

**د پوهنې وزارت**

د تعلیمي نصاب، د ښوونکو د روزنې او
د ساینس د مرکز معینیت
د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي
کتابونو د تالیف لوی ریاست

# پښتو

## دوهم ټولګی




د چاپ کال: ۱۳۸۹ هـ . ش.




**د پوهنې وزارت**

د تعلیمي نصاب، د ښوونکو د روزنې او
د ساینس د مرکز معینیت
د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي
کتابونو د تالیف لوی ریاست


# پښتو

## دوهم ټولګی


د چاپ کال: ۱۳۸۹ هـ . ش.

# د کتاب د تالیف، څېړنې او تدقیق کمیټې

## لیکوالان:

۱. د سر مؤلف مرستیال امین الله نژند او سوسن وردګ.

## تایید او مطالعه:

## ملي شورا:

د ولسي او مشرانو جرګو د دیني، پوهنې او لوړو زده کړو د کمیسیونونو غړي.

## د څېړنې او تدقیق کمېټې:

### کابل پوهنتون:

- پوهندوی محمد رفیق رفیق د کابل پوهنتون د ژبو او ادبیاتو د پوهنځي د پښتو دیپارټمنټ استاد.
- پوهنمل مکمل د کابل پوهنتون اداري مرستیال.

### علومو اکاډمي:

- سر څېړونکی عبدالله بختانی خدمتګار د افغانستان د علومو د اکاډمۍ پخوانی غړی.
- څېړونکی حبیب الله رفیع د افغانستان د علومو اکاډمۍ علمي غړی.
- سر څېړونکی عبدالواجد واجد د افغانستان د علومو اکاډمۍ د ژبو او ادبیاتو د مرکز رئیس.

### د پوهنې وزارت:

۱. ډاکټر صدیق الله ویرا د پوهنې وزارت سلاکار.
۲. د سر مؤلف مرستیال سید محمود کارګر د پښتو دیپارتمنټ علمي او مسلکي غړی او اډیټور.
۳. دمؤلف مرستیاله فروزان خاموش د پښتو دیپارتمنټ علمي او مسلکي غړې.
۴. د مؤلف مرستیال محمد سهراب دیدار د پښتو دیپارتمنټ علمي او مسلکي غړی.
۵. د مؤلف مرسیتال محمد عزیز تحریک د پښتو دیپارتمنټ علمي او مسلکي غړی او اډیټور.
٦. محمد عزیز حسین خېل د پښتو دیپارتمنټ علمي او مسلکي غړی.
۷. فریده نایبی د پښتو دیپارتمنټ علمي او مسلکي غړې.
۸. شکیلا دوست د پښتو دیپارتمنټ علمي او مسلکي غړې.
۹. انځورګران: محمد ظاهر طاهري او سید انور مېچنخېل.

**د محتویاتو، دینی، فرهنګي او سیاسي برخو د څېړنې او کره کتنې کمېټې:**

- دوکتور محمد یوسف نیازي د پوهنې وزارت سلاکار.
- محمد آصف ننګ د پوهنې وزارت د خپرونو او اطلاعاتو رئیس.

## د تدقیق، تصحیح او څارنې کمیسیون:

دکتور عبدالغفور غزنوي د تعلیمي نصاب، د ښوونکو د روزنې او د ساینس د مرکز معین- د کمیسیون رئیس.
د سرمؤلف مرستیال عبدالظاهر ګلستاني د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تالیف لوی رئیس.- غړی
سید محمود خلیق د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تالیف ریاست علمي غړی- غړی

**طرح او ډیزاین:**

**عزت الله غفاري**




## ملي سرود

دا وطن افغانستـــان دی — دا عزت د هـــر افغان دی
کور د سولې کور د تورې — هر بچي یې قهرمـــان دی
دا وطن د ټولو کـور دی — د بلوڅـــو د ازبکـــو
د پښتـــون او هزاره وو — د ترکمنـــو د تاجکـــو
ورسره عرب، گوجـــر دي — پامیـــریان، نورستانیـــان
براهوي دي، قزلباش دي — هم ایمـــاق، هم پشـه یان
دا هیـــواد به تل ځلیږي — لکـــه لمـــر پر شنه آسمـان
په سینـــه کې د آسیـــا به — لکـــه زړه وي جـــاویدان
نوم د حق مودی رهبـــر — وایو الله اکبر وایو الله اکبر

بسم الله الرحمن الرحیم

**د پوهنې د وزیر پیغام**

**گرانو استادانو، ښوونکو او زده کوونکو،**

ښوونه او روزنه د هر هېواد د پراختیا او پرمختگ بنسټ جوړوي. تعلیمي نصاب د ښوونې او روزنې مهم توکی دی چې د علمي پرمختگ او ټولنې د اړتیاوو له مخې رامنځته کېږي. څرگنده ده چې علمي پرمختگ او ټولنیزې اړتیاوې تل د بدلون په حال کې وي. له دې امله لازمه ده چې تعلیمي نصاب هم علمي او رغنده انکشاف ومومي. البته نه ښایي چې تعلیمي نصاب د سیاسي بدلونونو او د اشخاصو د نظریو او هیلو تابع شي.

دا کتاب چې نن ستاسو په لاس کې دی، پر همدې ارزښتونو چمتو او ترتیب شوی دی. علمي گټورې موضوعگانې پکې زیاتې شوې دي. د زده کړې په بهیر کې د زده کوونکو فعال ساتل د تدریسي پلان برخه گرځیدلې ده.

هیله من یم دا کتاب له لارښوونو او تعلیمي پلان سره سم د فعالې زده کړې د میتودونو د کارولو له لارې تدریس شي او د زده‌کوونکو میندې او پلرونه هم د خپلو لوڼو او زامنو په باکیفیته ښوونه او روزنه کې پرله پسې گډه مرسته وکړي چې د پوهنې د نظام هیلې ترسره شي او زده‌کوونکو او هېواد ته ښې بریاوې ور په برخه کړي.

زه پر دې ټکي پوره باور لرم چې زموږ گران استادان او ښوونکي د تعلیمي نصاب په رغنده پلي کولو کې ستره دنده او دروند مسؤولیت لري.

د پوهنې وزارت تل زیار کاږي چې د پوهنې تعلیمي نصاب د اسلام د سپېڅلي دین له بنسټونو، د وطن دوستی د پاک حس په ساتلو او علمي معیارونو سره سم د ټولنې د څرگندو اړتیاوو له مخې پراختیا ومومي.

په دې ډگر کې د هېواد له ټولو علمي شخصیتونو، د ښوونې او روزنې له پوهانو او د زده‌کوونکو له میندو او پلرونو څخه هیله لرم چې د خپلو نظریو او رغنده وړاندیزونو له لارې زموږ له مؤلفانو سره د درسي کتابونو په لا ښه تالیف کې مرسته وکړي.

له ټولو هغو پوهانو څخه چې ددې کتاب په چمتو کولو او ترتیب کې یې مرسته کړې، له ملي او نړیوالو درنو موسسو، او نورو ملگرو هېوادونو څخه چې د نوي تعلیمي نصاب په چمتو کولو او تدوین او د درسي کتابونو په چاپ او وېش کې یې مرسته کړې ده، مننه او درناوی کوم.

ومن الله التوفیق

فاروق وردگ

د افغانستان د اسلامي جمهوریت د پوهنې وزیر

# فهرست

# د الفبې تکرار

**موخه**: د الفبی د تورو بڼه ، غږ، لیکل او لوستل.

**پوښتنې**:

١) ستاسو نوم په کوم توري پیل کیږي؟

٢) دالفبې له تورو څخه کومې کلمې جوړولی شئ؟

٣) ستاسې نوم له کومو تورو څخه جوړ شوی دی؟

| | | | |
|---|---|---|---|
| پاڼه | باز | انار | آس |
| پـ پ | بـ ب | ا | آ |
| جوار | ثریا | ټال | تیلفون |
| جـ ج | ثـ ث | ټـ ټ | تـ ت |
| ځاله | څوکۍ | خیمه | حوض |
| ځـ ځ | څـ څ | خـ خ | حـ ح |
| ږمنځ | ژبه | ړوند | زمری |
| ږ | ژ | ړ | ز |
| رمبی | ذره بین | ډول | دستکش |
| ر | ذ | ډ | د |

| | | | |
|---|---|---|---|
| ساعت | شپېلۍ | ښاخ | صابون |
| ســ س | شــ ش | ښــ ښ | صــ ص |
| ضعيف | طوطي | ظرفونه | عينک |
| ضــ ض | طــ ط | ظــ ظ | عــ ع |
| غوا | فيل | قره قولي | کلنګ |

| | | | |
|---|---|---|---|
| غــ غ | فــ ف | قــ ق | کــ ک |
| ګل | لړم | مار | ناک |
| ګــ ګ | لــ ل | مــ م | نــ ن |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| شکوڼ | وزه | پياله | هيلۍ | منګی |
| ڼــ ڼ | و | ه | هــ | ی |
| خولي | څپلۍ | | وليکۍ | دوبي |
| ي | ۍ | | ئ | ي |



## د زده‌کوونکو فعالیت:

- زده کوونکي دې تش ځایونه په مناسبو تورو او د الفبې په ترتیب سره ډک کړي.

| | | | | | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| آ | ا | | | | | | | | | | | | | |
| | | | | | | | | | | | | | | |
| | | | | | | | | | | | | | | |

- زده کوونکي دې په ډلو ووېشل شي او د هرې ډلې هر غړی دې د الفبې یو توری خوښ کړي او درې کلمې چې په هغه توري باندې پیل کیږي ولیکي.

۱– ________ ۲– ________ ۳– ________



**کورنۍ دنده:** زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې د الفبې توري په ترتیب سره ولیکي.

## بسم الله الرحمن الرحیم

## لومړی لوست

# الله (ج)

**موخه**: دکلمو لیکل ، لوستل او د لوی خدای (ج) پېژندنه.



**پوښتنې**:

(۱) مونږ چا پیداکړي یو؟

(۲) لوی خدای (ج) له مونږ نه پرته نورڅه شیان پیداکړي دي؟

**الله (ج) ځمکه ، آسمانونه ، کاڼي ، غرونه ، انسانان، څـــاروي، الوتونکي مرغان، نباتات اوداسې نور ټول شیان پیداکړي دي.**

**لوی خدای (ج) ډېر مهربان او پرمونږ ډېر ګران دی.**

**مونږ دلوی خدای (ج) په دغو لویو نعمتونو باندې شکر وباسو او تل یې عبادت کوو.**

---

**دلغتونومعنا: کاڼي – تیږې ، مهربان–پیرزوکوونکی، عبادت–خدای(ج) یادول.**



## دزده کوونکوفعالیت:

- زده کوونکي دې په ډلو ووېشل شي او د هغو شیانو نومونه چې لوی خدای (ج) پیداکړي دي واخلي. او بیا دې هره ډله د ټولګي مخې ته راشي او د هغو شیانو نومونه دې خپلو ټولګیوالوته واخلي.
- د لاندې شکلونو له نیمګړو تورو څخه په خپلو کتابچو کې بـــشپړې کلمې جوړې کړئ.






لکه: م–ر–غــ–ه مرغه      غ – ر ____      غ – و – ا ____      ل – م – ر ____



**کورنۍ دنده:** زده کوونکي دې د (خدای (ج)، ځمکه، آسمانونه) کلمې په خپلو کتابچو کې په تورو ووېشي.

# دوهم لوست

## حضرت محمد(صلی الله علیه وسلم)

**موخه**: د تورو ترکیب، ټاکل او دکلمو لیکل او لوستل.





**پوښتنې:**

(۱) دپورتني رسم په هکله څه ویلی شئ؟

(۲) زمونږ دپیغمبر نوم څه دی؟

(۳) پوهیږئ چې قرآن کریم دلوی خدای (ج) له خوا پر چا نازل شوی دی؟

**حضرت محمد(ص) زمونږ خوږ پیغمبر دی. دی د مکې په ښار کې زیږیدلی دی، او له وړوکتوب څخه یې نیک اوښه عمل درلود. حضرت محمد(ص) له ماشومانو سره ډیره مینه درلوده او ده به ویل: (هغه څوک چې پرماشومانو باندې مهرباني او د لویانو درناوی ونکړي له مونږ څخه نه دی). قرآن کریم دالله (ج) له خوا زمونږ د لارښوونې له پاره پر حضرت محمد(ص) نازل شوی دی.**

---

**دلغتونو معنا: نازل – رالیږل ، وړوکتوب–ماشومتوب ، مینه – محبت ، درناوی–احترام.**



## دزده کوونکوفعالیت:

- په متن کې څلور کلمې چې د(م) په توري پيل کيږي پيداکړئ او بيا يې په خپلو کتابچو کې وليکئ.

- د ورکړشوو توروڅخه کلمې جوړې کړئ.

| | | | |
|---|---|---|---|
| م + ح + م + د = | محمد | م + ی + ن + ه = | |
| پ + ی+غ +م+ب +ر = | | د + ر + ن + ا + و+ ی= | |
| ع + م + ل = | | م+ هــ +ر + ب+ ا+ ن = | |

- زده کوونکي دې په ډلو باندې وويشل شي د هغو صفاتو په هکله دې خبرې وکړي چې دحضرت محمد(ص) د نيک عمل او له ماشومانو سره د مينې په هکله يې له لويانو څخه اوريدلي وي.

**کورنۍ دنده:** زده کوونکي دې د لوست د متن له مخې درې کلمې پيداکړي چې په يوه کلمه کې د (د) توری په سر او په بله کلمه کې په منځ او په دريمه کلمه کې په پای کې راغلي وي.



## دريم لوست

# علم او پوهه

**موخه**: دتورو ترکیب ، دکلمو لیکل اوډپوهې په ارزښت دزده کوونکو پوهېدل دي.



**پوښتنې:**

(۱) مونږ ولې درس لولو؟

(۲) لوی خدای (ج) د علم زده کړه پر چا فرض کړې ده؟

**علم پوهې ته وايي. هرڅوک چې ډېر لوست ووايي هغه علم زده کوي، پوه او هوښيار انسان ترې جوړيږي.**

**پوه انسان د خپل ژوند چارې په سمه توګه پرمخ بيايې نورو خلکو ته يې هم ګټه او مرسته رسيږي.**

**نوپر موږ ماشومانو باندې د علم زده کړه فرض ده. ځکه چې د اسلام لارښوونه ده علم په هر نارينه او ښځينه فرض دی.**

**دلغتونومعنا:** علم –پوهه، چارې–دندې ، مرسته – کومک.

يادونه: دعلم زده کړه په هر نارينه او ښځه فرض ده.



**دزده کوونکوفعالیت:**

**زده کوونکي دې د چوکاټ له تورو څخه کلمې جوړې کړي؟**

| | | |
|---|---|---|
| م | ل | ع |
| ر | و | ک |
| س | | |
| ت | | |
| ه | | |

زده کوونکي دې په ډلو باندې وویشل شي او (پوهه، فـــرض، هوښـــیار، نارینه) کلمې دې هېجاء کړي.

| |
|---|
| فر – ض |
| ــــــــ |
| ــــــــ |
| ــــــــ |



**کورنۍ دنده:** زده کوونکي دې د (پوهه، انسان، ژوند ) کلمې په خپلـــو کتابچو کې په تورو باندې واړوي.

## څلورم لوست

# ځای ټولول

**موخه**: د دې لوست موخه زده کوونکو ته په متن کې کلمې پېژندل او په عملي توګــه د فعــل ښوول، د ځای ټولول او پاک ساتل دي.



**پوښتنې:**

١ په پورتني رسم کې څه وینئ خبرې پرې وکړئ؟
٢ تاسې چې سهار له خوبه پاڅېږئ څه کوئ؟
٣ ستاسې په کور کې څوک او څه کارونه کوي؟

**سوسن د دوهم ټولګي زده کوونکې ده. هغه چې ســـهار لـــه خوبـــه پاڅیږي، خپل ځای ټولوي. بیا تشناب ته ځي، لاسونه مینځي، غاښونه برس کوي او مخ هم مینځي، وروسته ځي له مور، پلار، خور او ورور سره یوځای د سهار ناری خوري. له سهار ناري څخـــه وروســـته د ښوونځي کالي اغوندي، بیاله مور سره یوځای ښوونځي ته ځي.**

**دلغتونومعنا:** ټولګی– صنف، ښوونځی–مکتب .



## دزده کوونکوفعالیت:

زده کوونکي دې په ډلو وويشل شي او لاندې کلمې دې په تورو واړوي

| | |
|---|---|
| ١ سوسن | ٢ برس |
| ٢ سهار | ٥ غابښونه |
| ٣ ټولګي | ٦ مور |

لکه: احمد

ا ـ ح ـ م ـ د

هغو کلموته ځير شئ چې کرښه ور لاندې اېستل شوې ده.

لکه: ټولول، پاڅېږي ، مينځل کيږي ، کوي، خوري، اغوندي، او ځي دا ټــول فعلونه دي. دا فعلونه په لنډو جملو کې وکاروئ.



کورنۍ دنده: زده کوونکي دې په لوست کې داسې کلمې پيدا کړي چې د (م) په توري پيل شوې وي.

# پنځم لوست

# زموږ ښوونځی

**موخه**: د شعر له هم وزن کلمو سره د زده کوونکو بلدتیا، په ښوونځي کې د درسي وسایلو پېژندنه، د ښوونځي په ارزښت او په قواعدو پوهېدل دي.



**پوښتنې:**

(۱) په انځور کې څه شی وینئ؟
(۲) آیا د درسي وسایلو نومونه اخېستلی شئ؟
(۳) تېر کال مو په ښوونځي کې کوم کارونه ترسره کړي چې تاسوته په زړه پورې وو؟

ښوونځی مې دوهم کوردی — ټولګیوال مې لکه ورور دی
خومره ښکلې یې باغچه ده — سرتر پایه تکه شنه ده
زه په مینه ورته درومم — فیض دعلم پکې مومم
ډېر زړه سواند یې معلمان دي — مهربانه انسانان دي
پرموږ هېڅ نه په قارېږي — له ګناهو راتېرېږي
خومره خوږ دوی پیمان دی — ځکه هر یو موږ ته ګران دی
د ښوونکو احترام کړو — په اخلاص ورته سلام کړو

محمد عثمان (نژند)

**دلغتو نومعنا**: ښکلې– ښایسته، درومم – ځم ، اخلاص – دزړه پاکوالی.



## دزده کوونکوفعالیت:

د پورتني شعر له هم وزنه کلمو څخه بشپړې کلمې جوړې کړئ؟

| | |
|---|---|
| ک + ور = کور | قا + ری + ړی = |
| ور + ور = وروړ | را + تپـ + ری + ړی = |
| باغ + چه = | پیـ + مان = |
| شـ + نه = | کـ + ران = |
| درو + مم = | احـ + تـ + رام = |
| مو + مم = | سـ + لام = |
| معـ + ل + مان = | |
| ان + سا + نا + ن = | |

زده کوونکي دې د انځورونو نومونه په خپلو کتابچو کــې دکرښـــې پـــه واسطه ونښلوي.

| | | | |
|---|---|---|---|
| خودکارقلم | | کمپیوټر | |
| کتابچه | | تخته | |
| کتاب | | مېز | |
| کاغذ | | څوکۍ | |
| پنسل | | پنسل پاک | |
| | | قلم تراش | |



**کورنۍ دنده:** د څو درسي وسایلو نومونه په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

## شپږم لوست

# ټوکه

**موخه**: د کلمو لوستل ، ليکل او له ټوکو سره د زده کوونکو بلدتيا.





**پوښتنې:**

(۱) ستاسې کومه ټوکه زده ده؟ خپلو ټولګيوالو ته يې ووايئ؟

(۲) آيا تاسو ته په کور کې څوک ټوکې وايي؟

---

**يو سړي يو ليکوال ته ورغی ورته يې وويل: يوليک راته وليکه.**

**ليکوال ورته وويل:**

**پښه مې خوږيږي. هغه سړي ورته وويل زه خو تا کوم ځای ته نه لېږم اونه په پښه باندې ليکل کوې. ليکوال ورته وويل: رښتيا وايې، خــو افسوس هرچاته، چې ليک وليکم، زه په خپله ورسره ځم چې زما پــه ليک نورڅوک نه پوهيږي نو زه بايد خپل ليک په خپله ولولم.**



**د زده کوونکو فعالیت:**

زده کوونکي دې د (ليکوال، پينه ، ليک، ولولم) کلمې هېجا کړي؟

| | |
|---|---|
| ليکوال | ليک – وال |
| پينه | ---   --- |
| ليک | ---   --- |
| ولولم | ---   --- |

د متن په لوست کې څلور کلمې پيداکړئ چې د(و) په توري پيـــل شـــوي وي؟

زده کوونکي دې په نوبت دټولګي مخې ته راشي او يوه ټوکه دې نـــورو زده کوونکو ته واوروي؟

**کورنۍ دنده:** زده کوونکي دې د خپلو کورنيو له غړوڅخه يوه يوه ټوکه زده کړي او سبادې په نوبت سره خپلې ټوکې نورو ټولګيوالوته واوروي.



اووم لوست

# په ټولګي کې همکاري

**موخه:** دکلمو لوستل ، ليکل او په ټولګي کې همکارۍ ته د زده کوونکو هڅول دي.





**پوښتنې:**

(١) په پورتني انځورکې څه وينئ؟

(٢) آيا تاسې کله له چاسره مرسته او همکاري کړې ده؟

**زرغونې له ګلنارې څخه وپوښتل: تاسې په ټولګي کې له يو بل سره څه مرستې او همکارۍ کوئ؟ هغه وويل:**

**مورږ د خپل ټولګي په پاک ساتلو کې او د مېز اوڅوکيو په ترتيب او همدارنګه په فعاليتونو، لوبو او په لوستونو کې هم له يوبل ســـره همکاري کوو. زرغونې وويل:**

**تاسې ځومره ښه ټولګيوال ياست چې په ټولګي کې لکه د خپل کور په شان له يو بل سره مرسته کوئ.**

---

**دلغتونومعنا:** مرستې – کومکونه، ټولګيوال – همصنفيان.



**د زده کوونکو فعالیت:**

زده کوونکي دې په ډلو وويشل شي او د ډلې هر زده کوونکی دې يـــو کـــار ځان ته وټاکي او ټولې ډلې دې له يو بل سره د ټولګي په نظم او پـــاکوالي کې همکاري وکړي.

زده کوونکي دې د (زرغونه، ګلناره، ټولګی، پاکې) کلمې هېجا کړي.

| |
|---|
| زر – غو – نه |
| -------- |
| --------- |
| --------- |



**کورنۍ دنده:** زده کوونکي دې په خپله خوښه دلوست له متن څخه پنځه کلمې خوښې او په خپلو کتابچو کې دې وليکي.

## اتم لوست

# ښه زده کوونکی

**موخه**: د دغه لوست د کلمو او جملو لوستل، لیکل او د زده کوونکو له ښــو چلنـــدونو ســـره بلدتیا ده.



**پوښتنې**

(۱) په پورتنیو انځورونو کې څه وینئ؟ خبرې پرې وکړئ؟
(۲) ستاسو په نظر ولې شئ چې ښه زده کوونکی چاته ویل کیږي؟
(۳) ښه زده کوونکی په خپل ټولګي کې له نورو سره څه مرستې کولی شي؟

**ښه زده کوونکی سهار وختي له خوبه پاځیږي. لومړی خپله بستره ټولوي. بیا مور او پلار ته سلام اچوي او بیا سپورت کوي. ښه زده کوونکی خپل ځان اوکالي پاک ساتي. د سهار د ناري خوړلو څخه وروسته په خپل وخت ښوونځي ته ځي. په ښوونځي کې د خپلو ملګرو سره ښه ناسته ولاړه کوي.**

**د ښوونکو او مشرانو درناوی کوي، خپل درسونه په ټاکلي وخت سره لولي. ښه زده کوونکی د خپلو ملګرو د نومونو سره ځان آشنا کوي او هم ځان نورو ټولګیوالوته وروپیژني.**

---

**دلغتونومعنا**: ښوونکی– معلم ، زده کوونکی – شاگرد، مشران، لویان



## د زده‌کوونکو فعالیت:

- زده کوونکي دې په ډلو وویشل شي او د ښو زده کوونکو د صفتونو په هکله دې خبرې وکړي  او بیا دې هره ډله خپل نظرونه نورو ته ووایي.

- په درکړ شوي متن کې هغه کلمې پیداکړئ چې د یو وار څخه زیاتې راغلـــې وي لکه: (ملګرو)

- د هرې ډلې یو غړی دې دخپلې ډلې د ټولګیوالو نومونه نوروته ووایي؟

## کورنۍ دنده:

د دریو یا څلورو ټولګیوالو نومونه په خپلو کتابچو کې ولیکئ؟



# نهم لوست

# ښه ښوونکی

**موخه**: له تورو څخه دکلمو جوړول او د ښه ښوونکي په صفتونو پوهيدل دي.





**پوښتنې**

(۱) تاسوته ولې خپله ښوونکې ګرانه ده؟

(۲) ستاسو د ښوونکي نوم څه دی؟

(۳) تاسو له خپل ښوونکي څخه کوم شيان زده کوئ؟

---

**زموږ ښوونکې هره ورځ په پراخ تندي ټولګي تــه راننـــوځي. او له موږ سره ستړي مشي کوي. موږ هم دخپلې ښوونکې درناوی کوو. ښوونکې زموږ د ځان او کاليو پاکوالی ګوري. او له موږ نه ډېره خوشحاله کيږي. هغه ټولګيوال مو چې نه وي راغلي د هغوی پوښتنه کوي. ښوونکې موږ ته ليک او لوست زده کوي او موږ سره لـــوبې کوي. او موږ د هغې نه مننه کوو.**



د زده کوونکو فعالیت:

 زده کوونکي دې د ښوونکې د ستاینو په هکله له یو بل سره خبرې وکړي.

 زده کوونکي دې د (ښوونکی، لیکل، لوستل،مهرباني) کلمې پــه تــورو ووېشي.

زده کوونکي دې له ورکړل شوو تورو څخه مناسبې کلمې جـــوړې کړي. ( ټ – و – ل – ګ – ی – و–ا –ل )

(ز – د – ه – ک – و– و– ن – ک – ی) ( م – ن – ن – ه )



کورنۍ دنده: زده کوونکي دې دخپلې کورنۍ د غړو نومونه په خپلو کتابچو کې په تورو ووېشي.

## لسم لوست

# هوښیار کارغه

**موخه:** له زده کوونکو سره دکار د ښه سمون په هکله فکر پیداکیــــدل او د مناســــبو تــــدبیرونود جوړولو له پاره د دوی روزنه او د نویو کلمو زده کول دي.



**پوښتنې:**

(۱) تاسې مخکې له دې چې په یوه کار پیل وکړئ څه باید وکړئ؟

(۲) په پورتنیو رسمونو کې څه شی وینئ خبرې پرې وکړئ؟

**کارغه چې له ډېرې تندې څخه نږدې و چې مړ شي، ناڅاپه یې یو منګې ته پام شو. کله چې منګې ته ورنږدې شو وینې چې په منګې کې لږې اوبه شته، خو مښوکه یې اوبوته نه رسیږي.بې وزله کارغه چې هرڅومره کوښښ وکړ، خو ویې نشوای کولی چې له منګې څخه اوبه وڅښي.**

**ناڅاپه یې په فکر کې یوه چاره پیدا شوه. کارغه وړې وړې تیږې په خپله مښوکه واخیستې او په منګې کې یې واچولې، څوشیبې وروسته د منګې اوبه پورته راغلې او کارغه وکولی شول چې له منګې څخه اوبه وڅښي اوځان له مرګ څخه وژغوري.**

---

**دلغتونومعنا:** ناڅاپه—ناببره ( دستي) ، پام—فکر ، وژغوري—بچ کړي.



د زده کوونکو فعالیت:

- زده کوونکي دې په ډلوووېشل شي او د کېسې د مفهوم په هکله دې لــه یوبل سره خبرې وکړي بیا دې هره ډله خپل نظریات نورو ته واوروي؟

- زده کوونکي دې هغه کیسې چې د دوی زده دي د ټولګي په مخکې خپلو ټولګیوالو ته واوروي؟

کورنۍ دنده: زده کوونکي دې د هوښیار کارغه کیسه خپلو ورونو او خویندو ته ووایي او سباته دې په وار سره همدغه کیـــسه نورو ټولګیوالو ته واوروي.



## یوولسم لوست

# افغانستان

**موخه**: د کلمو لوستل، لیکل او د افغانستان له تاریخي ځایونو سره آشنا کیدل دي.




**پوښتنې:**

۱ د افغانستان د څو ښارونو نومونه واخلئ؟

۲ تاسې د افغانستان کوم ښارونه لیدلي دي؟

۳ زموږ د هېواد د مرکز نوم څه شی دی؟

۴ زموږ هېواد څه شیان لري نومونه یې واخلئ؟

**افغانستان زموږ خوږ اسلامی هېواد دی.**

**ګران افغانستان ښکلي باغونه، هسک اوجګ غرونه لري.**

**لوی ، لوی سیندونه او ارزښتمن کانونه لري.**

**موږ ټول د خپل هېواد بچیان یو.**

**خپله خاوره او هېواد راباندې ګران دی.**

**زموږ د هېواد مرکز کابل دی.**

---

**د لغتونومعنا: هېواد –وطن ، هسک – لوړ او جګ.**

## راځئ چې له افغانستان سره آشنا شو.



















**د زده کوونکو فعالیت:**

- زده کوونکي دې په ډلو ووېشل شي او هره ډله دې د افغانستان د پنځو ښارونو نومونه پیداکړي او بیا دې خپلو ټولګیوالوته ووایي.

- زده کوونکي دې د لوست په متن کې درې کلمې پیداکړي چې د(ا) په توري پیل شوې وي او بیادې په خپلو کتابچو کې ولیکي.



① ______ ② ______ ③ ______

- زده کوونکي دې د هغو پنځو ښارونو نومونه چې یې واخیستل په تورو ووېشي او هر یو زده کوونکی دې دیو نوم یوتوری انتخاب کړي او بیا دې په وار سره د ټولګي په مخ کې ودرېږي او زده کوونکي دې د هغه ښار نوم واخلي. (کلمه ولولئ).

**کورنۍ دنده:** زده کوونکي دې له خپل مور او پلار څخه د لویو ښارونو پوښتنه وکړي او بیا دې د څو ښارونو نومونه په خپلو کتابچو کې ولیکي.



## دوولسم لوست

# د خپلواکۍ جشن

موخه: دکلمو لوستل ،لیکل او د خپلواکۍ په ارزښت پوهیدل دي.



پوښتنې:

١ په پورتني انځور کې څه وینئ؟

٢ د خپلواکۍ په هکله څه پوهیږئ؟

٣ له تاسو څخه څوک دخپلواکۍ جشن ننداري ته تللی دی؟ څه چې موهلته لیدلي دي د هغه کیسه وکړئ.

**افغانان هر کال په ټول هیواد کې د خپلواکۍ جشن لمانځي. د خپلواکۍ جشن زموږ د نیکونو او پلرونو د تېرو ویاړنو د یادولو ورځ ده چې زموږ هیواد یې له بهرنیو تیري کوونکو څخه خپلواکه کړی دی.**

**په دې ورځ ټول خلک خوشحالي کوي، سپورتي لوبې او په زړه پورې رسم ګذشت ویني او کنسرتونو ته ورځي.**

**افغانستان زموږ کور دی او مونږ یې خپلواکي د علم او پوهې په زور او برکت ساتو.**

---

دلغتونومعنا: خپلواکي – آزادي ، ویاړنې – ویاړېدل، افتخارات

راځئ چې د خپل هېواد له دودیزو لوبو سره آشنا شو.













## د زده کوونکو فعالیت:

زده کوونکي دې په ټولګي او يا له ټولګي څخه دباندې د دايـــرې په شکل و دريږي او ښوونکې اوياښوونکی دې د دوی نه پوښتنه وکړي چې د (خپلواک) دکلمی په پای کې کوم توری راځي اوبيا دې زده کوونکو نه وغواړي چې داسې يوه کلمه ووايـــي چــې د (ک) په توري پيل کيږي لکه: (کـــدو) او همدارنګـــه بـــل زده کوونکی دې داسې کلمه ووايي چې د هغې کلمې د پای په توري پيل کيږي لکه: (واک) لـــومړی زده کـــوونکی **کـــدو** دوهـــم زده کوونکی **واک** دريم زده کوونکی **کور** او همداراز دې لوبې ته دوام ورکړل شي.



**کورنۍ دنده:** زده کوونکي دې پنځه کلمې چې په ټولګي کې يـــې وويلې په خپلو کتابچو کې وليکي.

## دیارلسم لوست

# بیرغ

**موخه**: زده کوونکي باید پوه شي چې زموږ ښکلی بیرغ د یووالي نښه ده. اوهم د دې شعر سم لوستل او لیکل دي.



**پوښتنې:**

(۱) دبیرغ د ارزښت په هکله څه پوهېږئ؟

(۲) ویلی شئ چې زموږ دګران هېواد افغانستان بیرغ څو رنګه لري؟

(۳) بیرغ زموږ د هېواد د څه شي نښه ده؟

---

**خوږ مې ترڅان بیرغه** — **لـــوړ دې نښان بیرغه**

**تـــل مو په سر رپیږه** — **ملـــي آرمـــان بیرغه**

**ستا شهامـــت به ساتو** — **ستا عظمت بـــه ساتو**

**ته مو د پت نښـــه یې** — **د اسلامیت نښـــه یې**

**اې د افغـــان بیـــرغه** — **لـــوړ دې نښان بیرغه**

**اروابناد محمد عثمان نژند**

---

**دلغتونومعنا**: لوړ– اوچت اوجګ، تل – همیشه ، آرمان – هیله ، شهامت – میرانه، عظمت– لویوالي، پت– عزت



**د زده کوونکو فعالیت:**

➕ زده کوونکي دې د (نښان، بېرغ ، شهامت، اسلامیت) کلمې هېجا کړي؟

| |
|---|
| بې – رغ |
| -------- |
| -------- |
| -------- |

➕ زده کوونکي دې له تورو څخه کلمې جوړې کړي او بیا دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

( ن + ښ + ه ) ( ع + ظ + م + ت )

( ب + ی + ر + غ ) ( ا + ف + غ + ا + ن)

**کورنۍ دنده:** زده کوونکي دې د بېرغ شعر په یادو زده کړي او په کورکې دې یې خپلو خویندو او ورونو ته ووایي؟



# ښوارلسم لوست

# کېسه

# بوډا او پاچا

**موخه**: کېسه پېژندل دکېسې اوریدل، ویل، سم لیکل او لوستل دي.







**پوښتنې:**

١ په پورتني انځورکې بوډا څه کوي؟

٢ نیالګي په کوم وخت کې اېښودل کیږي؟

**یوه بوډا نیالګی کېناوه. یو پاچا ښکار ته روان و. بوډا یې ولید چې نیالګي کېنوي. ورڅخه یې پوښتنه وکړه:**

**(څه کوې چې په دې سپینه ږیره نیالګي کېنوې؟ ته به یـــې مېـــوه وخورې، که نه؟**

**بوډا موسکی شو او ورته یې وویل: (نورو ونې کېنولې وې، موږ یې مېوه وخوړه،اوس یې موږ کېنوو چې نور یې مېوه وخوري.)**

**پاچا د بوډا په خبره خوښ شو او انعام یې ورکړ.**

---

**د لغتونومعنا: بوډا– زوړ ، موسکی– په خندا ، انعام– بخشش**



**دزده کوونکو فعالیت:**

زده کوونکي دې په ډلو ووېشل شي او هره ډله دې لاندې کلمو ته پام وکړي، هغه کلمې چې دځلورو تورونه جوړې شوې دي ورلاندې دې ځلور او هغه کلمې چې له دريو تورو نه جوړې شوېدي ترلاندې دې درې وليکي.

خوش  وکړه  پاچا  يوه  کيسه  مونږ  انعام  ږيره  روان

اوس  ښکار  بوډا  نور  ځخه  خوري  مېوې  وليد  ووېل

زده کوونکي دې له لاندې تورو ځخه کلمې جوړې کړي.

| | | | |
|---|---|---|---|
| ① پ + ا + چ + ا = | پاچا | ④ م + ى + و + ه = | |
| ② ب + و + ډ + ا = | | ⑤ ا + ن + ع + ا+م = | |
| ③ ن+ى+ا+ل+گ+ى= | | ⑥ و + ل + ى + د = | |

**کورنۍ دنده:** زده کوونکي دې له خپل مور او پلار نه وغواړي چې يوه کيسه ورته ووايي اودوی دې دهغې کيسې اتل پيداکړي اوسبادې هماغه کيسه له اتلانو سره خپلو ټولگيوالوته ووايي.



## پنځلسم لوست

# زمونږ پيسې

**موخه:** دکلمو لوستل، ليکل او دافغانۍ پېژندنه ده.







**پوښتنې:**

۱ په پورتني انځور کې څه شی وينئ؟

۲ پيسې دڅه شي له پاره پکارېږي؟

۳ آيا تاسو په پيسو کوم شيان اخيستلی شئ؟

۴ زمونږ دهېواد پيسې څه نومېږي؟

زمونږ دهېواد پيسې افغانۍ نومېږي، زه دپيسو په شمېرلو پوهېږم. دژوند اړتياوې لکه: خواړه، پوښاک، دکور لوښي اوداسې نور دپيسو په واسطه لاس ته راځي (زمونږ هېواد دپيسو دساتنې له پاره بانکونه هم لري. زما مور دپيسو دساتنې له پاره يو ډاډمن بکس لري) زه هم دپيسو دزېرمه کولو له پاره يوه قوتۍ لرم چې خپلې پيسې په کې ساتم.

دلغتونومعنا: اړتياوې – ضرورتونه، زېرمه – ذخيره



**دزده کوونکو فعالیت:**

- زده کوونکي دې دلوست په متن کې درې داسې کلمې را پیداکړي چې د(ب) په توري پیل شوي وي. اوبیادې په لاندې تشو کرښو باندې ولیکي.

① ______ ② ______ ③ ______

- زده کوونکي دې په ډلو وویشل شي او هره ډله دې دلوست له متن څخه پنځه کلمې غوره کړي او بیادې په تورو وویشي.

- زده کوونکي دې د هغو شیانو په هکله چې دپیسو په واسطه لاس ته راځي له یوبل سره خبرې وکړي او بیادې خپلو نورو ټولګیوالو ته معلومات ورکړي.



**کورنۍ دنده:** زده کوونکي دې د(پیسې، افغانۍ، شمېر) کلمې هېجا کړي.

## شپاړسم لوست

# علامه سيد جمال الدين افغان

**موخه**:زده کوونکي بايد دخپل هېواد ملي شخصيتونه وپېژني او دا متن دې سم ولولي او سم دې وليکي.



**پوښتني:**

(۱) تاسو د علامه سيد جمال الدين افغان نوم اورېدلی دی؟ که مو اورېدلی وي له چاڅخه اوچېري؟

(۲) په انځور کي دچا انځور وينئ دهغه نوم ووايئ؟

(۳) تاسي د علامه سيد جمال الدين افغان په هکله څه پوهيږئ؟

---

علامه سيد جمال الدين افغان دسيد صفدر زوی اوزموږ دهېـــواد په کونړ ولايت کې زيږيدلی دی.

له ماشومتوب څخه يې له علم اوپوهې سره مينـــه درلــوده او زموږ دهېواد يو نامتو ليکوال او پـــوه ســـړی و. زمـــوږ دهېـــواد دپرمختګ او دمسلمانانو ديووالي له پاره يې ډيرې هلې ځلې کړې دي.

ډېر کتابونه او مجلې يې ليکلي اوچاپ شوي دي.



**دزده کوونکو فعالیت:**

- زده کوونکي دې په ډلو ووېشل شي او هره ډله دې لاندې کلمې په تورو باندې واړوي.

( کونړ ، ا فغان ، هېواد، نامتو، مجلې )

- زده کوونکي دې دمتن په لوست کې درې داسې کلمې پیداکړي چې د(س) توری دکلمې په سرکې راغلي وي. لکــه: (ســید) اوپــه خپلو کتابچو کې دې ولیکي.

① ______ ② ______ ③ ______



**کورنۍ دنده:** زده کوونکي دې دخپلو کورنیو لــه غــړو ســره د علامه سیدجمال الدین افغان په هکله خبرې وکړي.

# اوو لسم لوست

# کندهار

**موخه**:له تورو څخه دکلمې جوړول، دکلمې په تورو اړول اودکندهار د تاریخې ښار پېژندنه ده.





**پوښتنې:**

١ په پورتني انځورکې څه شئ وینئ؟

٢ تاسې دخپل هېواد دیو تاریخي ولایت نوم اخیستلی شئ؟

٣ آیا تاسې کوم وخت کندهار ته تللي یاست؟ که تللي یاست څه مو لیدلي دي؟

کندهار زموږ دګران هېواد ډېر پخوانی او ښکلی ښاردی. په دې ښار کې یو ډېر سپېڅلی ځای دی چې د (خرقې مبارکې) په نامه یادیږي. په دې ځای کې دحضرت محمد(ص) (مبارکه خرقه) ساتل کیږي او ډېر خلک یې لیدوته ورځي.

**دلغتونومعنا: سپېڅلی– سوتره**

ماخذ: خپل هېواد وپیژنئ، د افغان نشراتي اداره ( انا)



**دزده کوونکو فعالیت:**

- زده کوونکي دې په ډلو ووېشل شي او په شکل کې دې له ورکړل شـــوو توروڅخه نومورې کلمې جوړې کړي.

۱– مبارک

۲– کندهار

۳– هېواد

۴– ګران

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| | | | | ک | ر | ا | ب | م |
| | | | | ن | | | | |
| | | | | د | | | | |
| د | ا | و | ي | هـ | | | | |
| | | | | ا | | | | |
| | | | | ر | | | | |
| | | ن | ا | ر | ګ | | | |

- زده کوونکي دې لاندې کلمې په تورو واړوي.

( احمد شاه، چینه ، خرقه ، جومات )

**کورنۍ دنده: زده کوونکي دې دافغانستان دېنځو ولایتونو نومونه په خپلو کتابچو کې ولیکي.**



# اتلسم لوست

# جرگه

موخه: دکلمو لوستل ، لیکل ، دمترادفي کلمې پېژندل او دملي دودونو په ارزښت پوهېدل دي.



**پوښتنې:**

(۱) په پورتني انځورکې څه وینئ؟
(۲) که ستاسود دووملګرو ترمنځ په کوم شي باندې کومه لانجه پيداشي تاسې څه کوئ؟
(۳) تاسې خپلې لانجې څه ډول حل کوئ؟

کله چې ستاسو دټولګیوالو ترمنځ په کتاب او یاداسې نوروشیانو باندې کومه لانجه رامنځ ته شي. که تاسو دنورو ملګرو له خوا دهغوی ترمنځ دیوې غونډې په واسطه روغه جوړه وکړئ. دې ته جرګه وايي.

زموږ لویان او مشران هم دخپل کلي او هېواد لانجې په جرګو حل کوي ، جرګه زمونږ پخوانی دود دی او موږ باید دجرګې پریکړوته درناوی وکړو.



## دزده کوونکو فعالیت:

- زده کوونکي دې دحلقې یا کړۍ په شکل په ټولګي اویا دټولګي نــه دبانــدې کېني او دوی ته دې یوه لانجه وښودله شي، دمثال په توګه: (کتــاب یــو دی زمری او توریالی دواړه په یو وخت کې کتاب غــواړي.) زده کــوونکي دې دجرګې په واسطه داسې پرېکړه وکړي چې دتوریالي یا دزمري په خپګان تمامه نه شي.

- زده کوونکي دې نورې داسې ستونزې جرګې ته وړاندې کــړي او دوی دې دحل لاره ورته پیدا کړي.

- دلاندې مترادفو کلمو معنا له چوکاټ څخه پیدا او دکلمو مخې ته يې وليکئ.

همصنفیان، جګړه، مرکه، احترام

جرګه ________ ټولیګوال ________ لانجه ________ درناوی ________



**کورنۍ دنده:** زده کوونکي دې دکور له غړو څخه دجرګې په هکله ساده معلومات وغواړي؟

## نولسم لوست

# کوچیان

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل او د زده کوونکو په دې پوهېدل چې کوچیان څنګه ژوند کوي.





**پوښتنې:**

(١) په پورتني انځور کې څه شی وینئ؟

(٢) کوچیان کوم ځاروي ساتي؟

(٣) کوچیان چېرته ژوند کوي؟

کوچیان په کیږدیو کې ژوندکوي.

دوی مېږې، وزې اوښان او نور ځاروي ساتی.

کوچیان په ژمي کې تودوسیموته ځي.

کوچیان داوړي موسم کې په سړوسیمو کې ژوند کوي.

ځوندی کوچی شپون دی.

کوچیان ډېر صادق خلک دي.

---

**کاخذ**: دېښتو زده کړې اساسي قابلیتونه.



## دزده کوونکو فعالیت:

پورتنی لوست دځه شي په هکله دی؟ سم ځواب په نښه کړئ.

________ دکوچنیانو

________ دکوچیانو

________ دماشومانو



کوچیان په اوړي چېرې ځي؟ سم ځواب په نښه کړئ.

________ تودوسیموته

________ سړو سیموته



په چوکاټ کې دلاندې کلمو معنا وې پیداکړئ.

| سیمې | کیږدۍ | صادق |
|---|---|---|
| ( ) ځایونه | ( ) خېمه | ( ) درواغجن |
| ( ) ښارونه | ( ) کوټه | ( ) رښتینی |
| ( ) غرونه | ( ) څپره | ( ) هوښیار |

**کورنۍ دنده: لوستل شوی متن په خپلو کتابچو کې په ښکلي لیک سره ولیکئ،**

**زده کوونکي دې د(ځایونه، خیمو،کلمو، سیمو) کلمې په تورو وویشي.**



# د اختر ورځ

**موخه**: چې زده کوونکي دنېکمرغه اومبارکو ورځو په لمانځلو اويادولو پوه شي او ددې لوســـت دمتن لوستل او ليکل زده کړي.




**پوښتنې:**

(١) په پورتني انځورکې څه وينئ؟ خبرې پرې وکړئ.
(٢) مسلمانان په کال کې څو اخترونه لري او داختر په ورځو کې څه کوي؟
(٣) تاسې داختر په ورځ کې څه کوئ؟

**مسلمانان په يو کال کې دوه اخترونه لري.**

**چې يو يې دکوچني اختر او بل يې دلوی اختر په نامه يادېږي.**

**داختر په شپه ماشومان، نجونې او ښځې ټول خپل لاسونه ســـره کوي او خوشحالي کوي. زمونږ خلک داختر په ورځ نوي کالي اغوندي ، نارينه داختر دلمانځه له پاره لويو جوماتونو ته ځي او داختر لمونځ کوي. بيا له خپلو ماشومانو سره يوځای د دوستانو اوګاونډيانو کورونو ته ځي او له هغوی سره اختر مبارکي کوي.**



## دزده کوونکو فعالیت:

- زده کوونکي دې دلاندې چوکاټ له تورو څخه کلمې جوړې کړي.

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ن | ا | ن | ا | م | ل | س | م |
| | | | خ | ا | ا | | |
| | | | ت | ش | س | | |
| | | | ر | و | و | | |
| | | | | م | ن | | |
| | | | | ا | ه | | |
| | | | | ن | | | |

- زده کوونکي دې په ډلو ووېشل شي، داختر په هکله دې له یوبـــل ســـره خبرې وکړي اوبیادې هره ډله خپل نظریات نورو ته واوروي.



**کورنۍ دنده:** زده کوونکي دې داختر، کالي ، بڼځه) کلمې په تورو ووېشي.

## يو وېشتم لوست

# د نيزې وهلو لوبه

**موخه**: دکلمو لوستل ، ليکل او دنيزې وهلو دلوبې پېژندنه ده.



**پوښتنې:**

(١) په پورتني انځور کې څه شی وينئ؟

(٢) آيا تاسو دنيزې وهلو لوبه ليدلې ده؟ که مو ليدلې څه ډول لوبه ده؟

(٣) نورې کومې لوبې پېژنئ؟

(۴) دنيزې وهلو لوبه څه ډول لوبه ده؟

---

**دنيزې وهلو لوبه يوه په زړه پورې لوبه ده.**

**چې زموږ دهېواد په ځينو سيمو کې ډېر دود لري.**

**په دغه لوبه کې دآس سپريدونکي په ډېر مهارت او چټکتيا سره په ځمکه کې وهل شوی موږی دنيزې په څوکه له ځمکې څخه راپورته کوي اودجايزې وړونکی شميرل کيږي. زموږ خلک له دغې لوبې سره ډېره مينه لري او دهغې سيل ته ورځي.**



## دزده کوونکو فعالیت:

زده کوونکي دې په لاندې کلمو کې هغه کلمې چې له دریو تورو څخه جوړې شوې دي په خپلو کتابچو کې درې او هغه چې له څلورو تورو څخه جوړې شوې وي څلور ولیکي.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| مینه | سیل | دغه | زړه | دود | لوبې | سره |
| ورځې | نیزې | ډېره | لرې | هغه | ځمکه | ډېر |

کورنۍ دنده: تاسې د لاندې بېلا بېلو لیکل شوو تورو څخه بشپړې کلمې جوړې کړئ.



## دوه وېشتم لوست

# اتڼ

**موخه**: دکلمو لوستل ، ليکل او دخپل هېواد له دودونو سره آشنا کېدل دي.





**پوښتنې:**

(۱) په پورتني انځورکې څه وينئ؟
(۲) آيا تاسو کله اتڼ ليدلی دی؟ که موليدلی وي څه وخت اوچېرته؟
(۳) خلک په کوم وخت کې اتڼ کوي؟
(۴) تاسې کومې دموسيقي آلې پيژنئ؟

---

اتڼ د افغانانو ملي دود دی. افغانان له اتڼ سره مينه لري.
دوی ملي او تاريخي ورځې په اتڼ کولو لمانځي.
په اتڼ کې ډول او سُرنۍ غږول کيږي.
ډولچي او سُرنچي د اتڼ نغمې غږوي. او افغانان ورته ښکلی اتڼ کوي.

---

**د لغتونومعنا**: ملي – ولسي ، دود – رسم او رواج



### دزده کوونکو فعالیت:

- زده کوونکي دې په ډلو ووېشل شي او لاندې ورکړل شوې کلمې دې په تورو واړوي. ( افغانان ، اتڼ ، ملي، ډول ، سُرنۍ)
- زده کوونکي دې په چوکاټ کې له ورکړل شوو تورو څخه کلمې جوړې کړي.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ا | ف | غ | ا | ن | = افغان |
| ډ | و | ل | | | |
| س | ر | ڼ | ی | | |
| ا | ت | ڼ | | | |
| م | ي | ن | ه | | |

**کورنۍ دنده:** زده کوونکي دې د **(اتڼ ، سُرنۍ ، نغمې)** کلمې په تورو وویشي.



# درویشتم لوست

# یووالی

**موخه**: د کلمو لوستل ، لیکل او د یووالي او اتفاق په ګټو پوهېدل دي.








**پوښتنې:**

١ په پورتنیو رسمونو کې څه وینئ؟
٢ ستاسو په نظر داخلک څه کوي؟
٣ تاسي ته په کور کې څوک کیسې کوي؟
٤ آیا ستاسو کومه کیسه زده ده؟ که مو زده ده خپلو ټولګیوالو ته یې واوروئ؟

یوه سپین ږیري سړي د ځنکدن په وخت کې خپل زامن راوغوښتل. هغوی ته یې دکوچنیو لرګیو یوه ګېډۍ ورکړه ترڅو یې ماته کړي ، ټولو زامنو یې په خپل وار سره دلرګیو پر ګېډۍ خپل زور وکړ. د لرګیو ګېډۍ یوه هم ماته نه کړه.

بیا سپین ږیري سړي ګېډۍ واخیسته او هغه یې خلاصه کړه. یو یو لرګی یې په خپله مات کړ او زامنو ته یې وویل: که چېرې تاسي په خپل مینځ کې اتفاق ولرئ، نوهېڅکله به هم مات نه شئ اوکه چېرې مو په خپل مینځ کې بې اتفاقي پیداشوه،

---

ماخذ: افغان نشراتي اداره (انا).

نوماغوندې سپين ږيرى اوكمزورى به هم تاسو د دې لرګيو پـــه شېر مات او له مينځه يوسي.

**د لغتونومعنا: اتفاق – يووالي ، په شېر – په شان**



**د زده كوونكو فعاليت:**

زده كوونكي دې د لوست له متن څخه داسې كلمې پيداكړي چې د (س) تورى په كې راغلى وي او بيا دې په خپلو كتابچو كې وليكي.

زده كوونكي دې له وركړل شوو تورو څخه كلمې جوړې كړي.

| | | | |
|---|---|---|---|
| ① ل + ر + ګ + ي+ و = ☐ | ④ ا +ت+ف+ ا+ق= ☐ |
| ② ځ + ن + ک +د+ ن= ☐ | ⑤ ز + ا + م + ن = ☐ |
| ③ م + ا + ت = ☐ | ⑥ س + ړ + ي = ☐ |



**كورنۍ دنده:** زده كوونكي دې د متن دوې جملې په ښكلي ليک پـــه خپلو كتابچو كې وليكي.

## څلورويشتم لوست

# دکال څلور فصلونه(موسمونه)

**موخه**: دکال پيژندل،دکال دفصلونواو مياشتو د نومونو پيژندل او د دې لوست د مـــتن ليکـــل او لوستل دي.





**پوښتنې:**

(١) آيا کولی شئ چې په پورتنيو انځورونو کې د اوړي فصل وښيئ؟

(٢) پوهيږئ چې يو کال څو فصله لري؟

(٣) ويلی شئ چې هر فصل څو مياشتې دی؟

(٤) داوړي دمياشتو نومونه کوم دي؟

---

يوکال څلور موسمه لري. هر موسم ته يې فـــصل وايـــي لکـــه: (پسرلی، دوبی، منی، ژمی) دپسرلي فصل درې مياشـــتې دی: وری (حمل) ، غويی (ثور) غبرګولی (جوزا). په دې فصل کې بارانونـــه اوري. دوبی هم درې مياشتې دی: چنګاښ (ســـرطان) ، زمـــری (اسد) وږی (سنبله) په دې موسم کې هوا توده وي.

منی هم درې مياشتې دی: تله ( ميزان) ، لړم، (عقرب) ، ليندـــۍ (قوس) په دې فصل کې هوا ورو ورو سړيږي.

ژمی هم درې مياشتې دی: مرغومی (جدي) ،سلواغه (دلو) کب (حـــوت) په دې فصل کې کله کله واوره وريږي.



## د زده کوونکو فعالیت:

زده کوونکي دې د چوکاټ تش ځایونه په مناسبو کلمو سره ډک کړي.




| فصل | لومړۍ میاشت | دوهمه میاشت | دریمه میاشت |
| --- | --- | --- | --- |
| پسرلی | | | |
| | چنګاښ | زمری | وږی |
| منی | | | |
| | مرغومی | سلواغه | کب |

دوولس زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي او هر زده کوونکي ته دې د یوې میاشتې نوم ورکړل شي او بیا دې هر زده کوونکی دټولګي مخې ته ودریږي او خپل نوم دې په زوره واخلي چې ټول يې واوري او بیا دې د میاشـــتو پـــه ترتیـــب ودریږي.




په پای کې دې درې زده کوونکي په ځای ودريږي چې دکال یو فصل ورونبيي.

زده کوونکي دې د انځورونو د فصلونو نومونه او د فصلونو نومونه د کرښې په وسیله ونښلوي.














**کورنۍ دنده:** زده کوونکي دې دکال د یوه فصل د میاشتو نومونه په خپلو کتابچو کې ولیکي.

## پنځه ويشتم لوست

# د اونۍ د ورځو نومونه

**موخه**: د يوې اونۍ د نومونو پېژندل، او د دې لوست دکلمو لوستل ، ليکل او زده کول دي.



**پوښتنې:**

(۱) ويلی شئ چې يوه اونۍ څو ورځې ده؟

(۲) تاسې د اونۍ نومونه واخلئ؟

(۳) تاسې په يوه اونۍ کې کوم کارونه کوئ؟

شنبه ، يکشنبه، دوشنبه، سه شنبه، چهار شنبه، پنجشنبه او جمعه. د يوې اونۍ د ورځې نومونه دي.

مور په اونۍ کې شپږ ورځې ښوونځي ته ځو. د جمعې په ورځ ټول خلک رخصت وي. دوی په خپلو کورونـــو او نـــورو ځايونو کې خوشحالي اوساعتيري کوي. مور هم له خپلو کورنيو سره دجمعې په ورځ د سيل ځايونو ته ځو او د ستړيا د لېـــرې کولو له پاره هلته له خپلې کورنۍ سره مېلې کوو.



## د زده کوونکو فعالیت:

زده کوونکي دې په ډلو باندې ووېشل شي او بیا دې د اونۍ د ورځو نومونه په تورو وویشي.

١ شنبه ( ش + ن + ب + ه )
٢ یکشنبه (  )
٣ دوشنبه (  )
٤ سه شنبه (  )
٥ چهارشنبه (  )
٦ پنجشنبه (  )
٧ جمعه (  )

زده کوونکي دې په ورکړل شوي متن کې داسې بشپړې کلمې پیداکړي چې د(ش) توری په کې راغلی وي اوبیا دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

١ شپږ ____ ٢ ____ ٣ ____
٤ ____ ٥ ____ ٦ ____



**کورنۍ دنده:** زده کوونکي دې د اونۍ د ورځو نومونه په تورو وویشي.

## شپږ ویشتم لوست

# پسرلی

**موخه**: دکلمو لوستل ، لیکل او د پسرلي دګټو په ارزښت پوهېدل دي.





**پوښتنې:**

١. پسرلی دکال کوم فصل دی؟
٢. په پورتنو انځورنوکې کوم فصل وینئ؟
٣. په پسرلي کې بزګر څه کوي؟
٤. بلبلې او جنچنې چېرې چغیږي؟
٥. شپانه څه شی پیایي؟
٦. تاسې په پسرلي کې کوم کارونه کولای شئ؟

پسرلی د کال لومړی فصل دی، په دغه فصل کې هوا ښــه وي، د غرو لمنې او دښتې په شنو بوټــو او رنګارنــګ ګلانــو ښایسته وي، بلبلې او چنچنې په باغونو کې چغیږي او په ونو کې ځالې جوړوي، بزګران په خپلو ځمکو او باغونو کې کار کوي.

---

**د لغتونومعنا**: فصل – دکال موسم ، بوخت – لګیا

کوچیان شنو دښتو او د غرو لمنو ته ځي. او هلتــه ژونــد کوي، شپانه رمې پيايي، ماشومان د خپلو زده کــړو لــه پــاره ښوونځي ته ځي هرڅوک په خپل کار بوخت وي.



دزده کوونکو فعاليت:



زده کوونکي دې په ډلو ووېشل شي او هره ډله دې د هغو مېــوو او نورو شيانو په هکله خبرې وکړي چې په پسرلي کې پيدا کيږي، بيا دې د دريو مېوو نومونه واخلي چې په پسرلي کې پيدا کيږي.

١ ______ ٢ ______ ٣ ______

کورني دنده: زده کوونکي دې دخپلو کورنيو له غړيو سره د پسرلي په ځانګړتياوو خبرې وکړي او سبا دې خپل نظريات ټولګي والو ته ووايي.



# اووه ويشتم لوست

# باران

**موخه**: د باران په ګټو پوهېدل او د دې لوست لوستل او ليکل دي.



**پوښتنې:**

١ په باراني ورځو کې له څه شيانو څخه ګټه اخلئ ترڅو لانده نشئ؟

٢ دباران له اوبو څخه څه ګټه اخيستل کيږي؟

٣ که باران ونه وريږي څه کيږي؟

بـــارانه ښـــه وريږه
زما پـــه زړه وريږه
ګلونه سمه غـــرکړه
په سمه غـــره وريږه
باران هـــوا پاکوي
باران فضـــا پاکوي
دوړې ګردونه پاک شي
باران دنيا پاکـــوي

(اروابناد روغمن )



## د زده کوونکو فعالیت:

- زده کوونکي دې په ډلو ووېشل شي او بیادې دباران دګټو په هکله خبرې وکړي.

- زده کوونکي دې د شعر له متن اته (۸) کلمې پیدا کړي چې لــه دریــو توروڅخه جوړې شوي وي.

| | | | |
|---|---|---|---|
| ① پاک | ② ______ | ③ ______ | ④ ______ |
| ⑤ ______ | ⑥ ______ | ⑦ ______ | ⑧ ______ |

**کورنۍ دنده:** زده کوونکي دې له لاندې تورو څخه کلمــې جوړې کړی. (ب + ا + ر + ا + ن ) ( و + ر + ی + ږ+ ه )



( ف + ض + ا )

( پ + ا + ک + ه )

## اته ويشتم لوست

# د اوبو منابع

**موخه**: د دې لوست موخه دا ده چې زده كوونكي د اوبو زېرمې (منابع) وپېژني او د هغــو پــه ارزښت پوه شي او دا لوست سم ولولي او ويې ليكي.





**پوښتنې**:

(۱) پاكې اوبه چېرې پيداكيږي؟

(۲) تاسې د ورځې څو ځلې اوبه څښئ اوپه څه شي كې يې څښئ؟

(۳) د پاكو اوبو څښل څه ګټه لري؟

اوبه په څاه ګانو، كاريزونو، چينو، نلونواو داســـې نـــورو ځايونو كې هم پيداكيږي، دڅاه ګانو، نلونو اوبه پاكې اورنې وي ځكه چې اوبه يې محفوظې وي. كه غواړو چې اوبـــه پـــاكې او صحي شي بايد وجوشول شي اوبيا وڅښل شي.

انسانان، څاروي،مرغان، او نباتات اوبوته اړتيا لري. كـــه چېرې اوبه نه وي ژوند هم نه كيږي هر سړى بايد د اړتيا له مخې په ورځ كې څو ځلې اوبه وڅښي. په پاک ګيلاس كې اوبه څښل ښه كار دى د پاكو اوبو څښل روغتيا ته ګټه رسوي.

---

**د لغتونومعنا**: منابع – زيرمې ، رڼې – روښانه ، څاروي – حيوانات



## د زده کوونکو فعالیت:

زده کوونکي دې د لوست متن ولولي او هغه کلمې چې د چوکاټ په تورو پیل کیږي په خپلو کتابچو کې بشپړې کړي.




په ورکړل شویو کلمو کې هغه کلمه چې په متن کې دوه ځلې راغلې وي په تشو ځایونو کې ولیکئ.

١ نلونو ______
٢ ______
٣ ______
۴ ______
۵ ______
٦ ______



**کورنۍ دنده:** زده کوونکي دې د لوست له متن څخه دوې کلمې خوښې کړي او بیا دې سباته په تختې باندې په تورو وویشي.

# نهه ویشتم لوست

# لمر

**موخه**: چې زده کوونکي د لمر د ګټو په ارزښت وپوهیږي. او د لمر شعر سم ولولي او ویې لیکي.





**پوښتنې**:

(۱) د لمر د ګټو په هکله څه پوهیږئ؟

(۲) لمر له کوم خواځخه راخیژي او کوم خواته لویږي؟

(۳) مونږ لمر ته ولې اړتیا لرو؟

زه ځلانده لمر یمـــه
ښکـــلی منور یمـــه
* * *
ساړه لـــرې کومـــه
تودوخـــه راولمـــه
* * *
تیارې پسې رڼا یمـــه
ملګری د هرچا یمـــه
* * *
ګلان راته خنداکوي
ناځي اوموسکا کوي
زه د ژوند خبـــریمه
ښکلی منـــور یمه

اروابنباد محمد عثمان نژند



## د زده کوونکو فعالیت:

زده کوونکي دې له تورو شخه کلمې جوړې کړي.

(۱) خ+ل+ا+ا+ن+د+ه =

(۲) ښ + ک + ل + ی =

(۳) س + ا + ږ + ه =

(۴) ت+و+د+و+خ+ه =

(۵) ر + ڼ + ا =

(۶) م + و +س +ک+ا =

زده کوونکي دې په شعر کې داسې کلمې پیداکړي چې له یو وار شخــه زیاته راغلې وي.

(۱) ______ (۲) ______ (۳) ______ (۴) ______ (۵) ______

**کورنۍ دنده:** زده کوونکي دې د (ښکلي ، ځلانده ، لمر ) کلمې په تورو وویشي.



## دیرشم لوست

# د وخت ارزښت

**موخه**: د وخت پېژندل، په ارزښت پوهېدل، د وخت نه په سمه توګه ګټه اخیستل او د متن لوستل اولیکل دي.



**پوښتنې:**

(١) کله چې په کور کې یاست څه کوئ؟

(٢) آیا د خپلو کارونو د سرته رسولو له پاره له مهال وېش څخه ګټه اخلئ؟

(٣) تاسې د وخت څخه څه ډول ګټه اخلئ؟

ما د ورځنیو کارونو د سرته رسولو له پاره په کور کې مهال وېش جوړ کړی دی. چې د هغه له مخې خپلې دندې لکه: د درسونو لوستل او د کورنۍ دنده چې ښاغلی ښوونکی یې موږ ته راسپاري په منظمه توګه سرته رسوم. همداراز د کور په چاروکې هم برخه اخلم او له خپلې کورنۍ سره مرسته کوم. زه په ټاکلي وخت د تلویزیون خپروني په مینه ګورم او له هغه څخه خوند اخلم. له هغه وروسته بیا له خپل ګاونډي ملګري سره لوبې هم کوم. زه له وخت څخه پوره ګټه اخلم. او خپل ارزښتناکه وخت خوشې نه تېروم. څوک چې خپل وخت خوشې تېروي په ژوند کې به له نورو وروسته وي.

ګرانو زده کوونکو! وخت لکه سره زر دی باید له وخت نه سمه ګټه واخلئ. ترڅو د راتلونکي نېکمرغه ژوند خاوندان شئ.



د زده کوونکو فعالیت:

- زده کوونکي دې په ډلو ووېشل شي ، هره ډله دې ځان ته یو مهال وېش جوړ کړي او د خپل مهال وېش په هکله دې زده کوونکوته څرګندونې وکړي.
- زده کوونکي دې د لاندنیو تورو څخه کلمې جوړې کړي.

(۱)(ا+ر+ز+ښ+ت ☐ (۲) (م+ن+ظ+م+ه) ☐ (۳) (ک+و+ر+ن+ۍ) ☐

کورنۍ دنده: زده کوونکي دې د لوست د متن له مخې څــو کلمې غوره کړي اوبیا دې په تورو وویشي.



## یو دېرشم لوست

# په ځنګله کې اور

**موخه**: دکلمو لوستل، لیکل او زده کوونکي باید په دې یوه شي چې پیاوړې اراده له مونږ ســـره مرسته کوي چې په ستونزو باندې بریالي شو.






**پوښتنې:**

(۱) په پورتنیو انځورونو کې څه شی وینئ او هغوی څه کوي؟

(۲) آیا کوم وخت له کومې ستونزې سره مخامخ شوي یاست؟
اوبیامو ستونزه څه ډول له منځه وړې ده.

(۳) تاسې دستونزو د له منځه وړلو له پاره څه کولی شئ؟

په یوه ځنګله کې ډول، ډول ځناورو ژوند کاوه. یوه ورځ ځنګله اور واخیست. ټول ځناور په تېښته شول، خومیږیانو د اور خواته ور ودانګل. پیل له یوه میږي څخه وپوښتل چې تاسو نـــه تښتئ؟ میږي وویل: نه! مونږ غواړو چې اور ووژنو، دمیږي خبرو پیل په سوچ کې کړ، دنورو حیواناتو مخه یې ونیوله او ویې ویل: مونږ باید اور مړ کړو! ټولو ورسره ومنله او له سیند څخه یې اوبه راوړې. او اوریې په ګډه مړ کړ. ټول له پیل نه خوښ شول. پیل ته یې سوغات برابر کړ او دهغه کورته یې یووړ خو پیل سوغات ونه مانه او ویې ویل: دا سوغات دمیږیانو حق دی.

ماخذ: په ځنګله کې اور، افغان نشراتي اداره (انا)

له هغې ورځې وروسته ټولو ځناورو میږیانو ته درناوی پیـــل کړ. نوګرانو زده کوونکو! پیاوړې اراده له مونږ ســـره مرســـته کوي چې پر ستونزو بریالي شو.

د لغتونومعنا: سوچ– فکر ، پیاوړی – قوي او غښتلی ، ستونزې – مشکلات



دزده کوونکو فعالیت:

زده کوونکي دې په ډلو ووېشل شي او د لوست له مخې دې اته کلمـــې چې له دریو تورو څخه جوړې شوې وي په خپلو کتابچو کې ولیکي.

① پیل ____ ② ____ ③ ____ ④ ____

⑤ ____ ⑥ ____ ⑦ ____ ⑧ ____

**کورنۍ دنده:** زده کوونکي دې داکېسه خپلو دوستانو او یا دکور غړو ته وکړي او بیا دې له دوی څخه وغواړي چې که چېرې د هغـــوی کومه کیسه زده وي هغه دې ورته ووايي او سباته دې زده کوونکي په ټولګي کې هماغه کیسه ووايي.



# دوه دېرشم لوست

# څاروي

موخه: دڅارويو د نومونو پېژندل،لوستل ،ليکل اود هغو په ګټو پوهېدل دي.



**پوښتنې:**

١ په پورتنيو انځورونوکې کوم څاروي وينئ نومونه يې واخلئ؟

٢ له کورنيو څارويو څخه کومې ګټې اخلو؟

زمونږ د هېواد خلک ډول، ډول څاروي ســاتي لکــه: غواوې ، مېښې، آسونه، مېږې ، وزې ، پسونه او نور.

دځينو څارويو له غوښو څخه د خوړلو له پاره ګټــه اخلي اوله شيدوڅخه يې مستې، کوچ، شړومبې، غــوړي، کرت، پنېر، او پوڅې جوړوي چې خوړل يــې د بــدن د روغتيا له پاره ډېر ضروري دي.

دځينو څارويو له پوستکو څخه بوټونه، بکسونه او نور شيان جوړيږي. له وړيو څخه يې غالۍ، ټغر، ليمڅي، بنيانونه او داسې نور شيان جوړوي.



**د زده کوونکو فعالیت:**

زده کوونکي دې په ډلو کې دکورنیو ځارویو دګټو په هکله خبرې وکړي.

زده کوونکي دې د شپږو کورنیو ځارویو نومونه چې له انسانانو سره عادت شوي، ولیکي.

١ ______ ٢ ______ ٣ ______ ۴ ______

۵ ______ ٦ ______

زده کوونکي دې په وړو ډلو کې رسمونه له نومونو سره یوځای دکرښې په واسطې سره ونښلوي

| | |
|---|---|
| ببزو | آس |
| غوا | اوښ |
| خر | سوی |
| غرڅه | پیل |
| سپی | ګیدړ |
| زمری | پړانګ |

کورنۍ دنده: زده کوونکي دې د هغو څارویو نومونه په خپلو کتابچو کې ولیکي چې د هغوی خوښ دي.



## درې دېرشم لوست

# مېږه

**موخه**: د متن لوستل، لیکل په متن کې د متضادو کلمو پېژندل د مېږې د ګټو په ارزښت پوهېدل دي.



**پوښتنې:**

1. په پورتني انځور کې کوم ځاروی وینئ نوم یې واخلئ؟
2. تاسو مېږه پېژنئ مېږه څه ډول حیوان دی؟
3. تاسو پوهېږئ چې له مېږې څخه کومې ګټې اخیستل کېږي؟

مېږه له کورنیو ځارویو څخه ده. زموږ خلک دغه ځاروي په خپلو کورونو کې ساتي. د دغه ځارویو روزنه ډېرې ګټې لري. له غوښو څخه یې دخوړلو له پاره ګټه اخلو او له شیدوڅخه یې کوچ، رش، پنیر، مستې، غوړي اوکرت لاس ته راځي چې خوړل یې د بدن د روغتیا له پاره ډېره ګټه لري. همدارنګه له وړیو څخه یې، غالۍ، ټغرونه، او د اغوستلو توکي تر لاسه کېږي. له پوستکو څخه یې ډول ، ډول بوټونه، بکسونه، خولۍ او نورشیان جوړیږي.



## د زده کوونکو فعالیت:

- دهرې ډلې زده کوونکي دې د مېږو په باره کې د سترګو ليدلي حالونه بيان کړي.

- زده کوونکي دې د مېږو له شيدو، غوښو، وړيو او پوستکي څخه دګټې اخيـــستلو لارې دټولګي په مخکې ووايي.

- زده کوونکي دې د لوست په متن کې درې داسې کلمې پيـــداکړي چـــې پـــه (غ) توری پيل شوی وي.

- زده کوونکي دې د لاندې چوکاټ متضادې کلمې دکرښې په واسطه ونښلوي.

| | |
|---|---|
| ډېرې | لږ |
| ګټې | تاوان |
| روغتيا | ناروغي |

**کورنۍ دنده:** زده کوونکي دې د مېږې د شيدو په باره کې يوه جمله په خپلو کتابچو کې وليکي.



# څلور دېرشم لوست

# ټوکه

**موخه**: کیسه وپېژني دکیسې اوریدل، بیرته ویل، او دکیسې لیکل او لوستل دي.



**پوښتنې:**

(۱) په پورته انځورکې څه شی وینئ؟
(۲) که دچا کومه کیسه زده وي خپلو ټولګیوالوته دې ووایي؟
(۳) تاسو ته په کور کې څوک کیسې کوي؟

---

د یوه سړي خر ورک شوی و. خلکـــو ورتـــه د زړه ډاډ ورکاوه چې خیر دی مه خپه کیږه ته دې ژوندی وې. بل خر به پیداکړې. سړي وویل: زه هم دغه شکر کومه چې زه نه وم پرې سپور. که زه چېرې په خره سپور وای، زه به هم ورک شوی وم. خلکو وخندل. ده ورته وویل: زماخر ورک شوی دی او زه وریسې خپه یم اوتاسې خاندئ. دا خو انصاف نه دی.

ماخذ: افغان اساسي قابلیتونه دپښتوله پاره د زده کړې لازمي مواد.



### د زده کوونکو فعالیت:

- زده کوونکي دې په وړو ډلوکې له خره څخه دکار اخیستلو مثالونـــه پیداکړي.

- بیا دې د دې مثالونو څخه لنډې کیسې جوړې کړي لکه: خربار وړي،

- زده کوونکي دې داسې څلور کلمې پیداکړي چې د(خ) توری ولري.

**کورنۍ دنده:** زده کوونکي دې د خپلو کورنیو له غړو څخه دبار وړونکو حیواناتو په هکله د یوې خاطرې غوښتنه وکړي او بیا دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.



# پنځه دېرشم لوست

# الوتونکي مرغان

**موخه**: د مرغانو پېژندل، د مرغانو ژوند اوګتې، او د مرغانو د نومونو ليکل او لوستل دي.



**پوښتنې:**

(۱) په پورتني انځوروونو کې کوم مرغان وينئ؟ نومونه يې واخلئ؟
(۲) آيا تاسي هم په خپلو کورونو کې مرغان ساتئ؟ که يې ساتئ کوم مرغان؟
(۳) تاسي پېژنئ چې لامبو وهلی شي؟

زموږ په هېوادکې ډول ، ډول الوتـــونکي مرغـــان لکـــه: لګ لګ، زاڼې، زرکې، سيسی، هيلی ، چرګان ، بتې، خلتـــومي چرګ (پيل مرغ)، بانبه، کارغه، چنچڼې او داسي نور پيداکيږي چې ځيني يې په غرونو کې اوسيږي او ځيني نور بيا په ځنګلونـــو کې ژوند کوي. زموږ خلک ځيني الوتونکي مرغان پـــه خپلـــو کورونو کې هم ساتي او د هغو په روزنه بوخت وي.

او د ځينو مرغانو له هګيو او غوښو څخه ګټه اخلي. نوځکه د زياتي پاملرني وړ دي.



## د زده کوونکو فعالیت:

زده کوونکي دې د کورنیو چرګانو د ګټو په باره کې له یو بل سره خبرې وکړي.

په ډلو کې انځورونو له مناسبو نومونو سره په کرښو ونښلوئ.







ډینګ

طوطي

کارغه

باښه

کوتره

زرکه

خلتومی چرګ (پیل مرغ)

هیلۍ

ګل سر

طاوس







دڅلورو کورنیو مرغانو، نومونه ولیکئ:

١ ______ ٢ ______ ٣ ______ ۴ ______



**کورنۍ دنده:** د دریو سارايي الوتونکو مرغانو نومونه، په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

## شپږ دېرشم لوست

# سوی

**موخه**: د سوېې د متن سم لوستل، لیکل او د سویې پېژندل دي.



**پوښتنې:**

(۱) په پورتني انځورکې کوم ژوي وینئ؟
(۲) دسویې غوږونه دکوم حیوان په څېر دي؟
(۳) آیا پوهیږئ چې دغه ژوي څه شیان خوري؟

---

د سوی شکل ته پام وکړئ ، هغه د یوه بوټي لاندې ناسته ده. وګوره د هغه د پوستکي رنګ، د وچو پاڼو او ښاخونو د رنګ په څېر دی.

هغه یوه شوی ده، چې یو ژوی غواړي دی ښکار کړي هغه په ځغاسته راغلی او دیوه بوټي لاندې پټه ده، ترڅو دی ونه ویني د هغه غوږونه اوږده دي. سوی د بوټو بېخونه او شنه واښه خوري. هغه د ونو په بېخونو او دځمکو په سوړو کې ځان ته کور جوړوي. ځینې کورنۍ یې په خپلو کورونو کې هم ساتي.



## د زده کوونکو فعالیت:

- زده کوونکي دې د لوست له متن څخه درې کلمې پیداکړي چې د (و) توری یې په پیل، مینځ او پای کې راغلی وي. داکلمې دې بیا په خپلو کتابچو کې ولیکي.



① ______ ② ______ ③ ______

**کورنۍ دنده:** زده کوونکي دې د سوی په باب یـــوه کیسه پیداکړي او بله ورځ دې خپلو ټولګیوالو ته ووایي.



## اووه دېرشم لوست

# کورني چرګان

**موخه**: دکورنیو چرګانو پېژندل، د هغو روزنه او ګټې او د هغو د نومونو لیکل او لوستل دي.



**پوښتنې:**

(۱) په پورتني انځورونو کې څه شی وینئ؟

(۲) ویلای شئ چې له کورنیو چرګانو څخه کومې ګټې اخیستل کیږي؟

(۳) آیا تاسې په خپلو کورونو کې چرګان ساتئ؟ که یې ساتئ د هغو څه ډول پالنه کوئ؟

زموږ خلک په خپلو کورونو کې چرګان ساتي او د هغو روزنه کوي. له کورنیو چرګانو څخه هګۍ تر لاسه کوي او هم یې له غوښو څخه ګټه اخلي.

ځینې خلک بیا د چرګانو د روزنې له پاره فـــارم جـــوړوي. چرګان په فارم کې ښه روزل کیږي، او ډېره ګټه ترې لاس تـــه راځي. باید پام وشي چې دکورنیو چرګانو د استوګنې ځای پاک وساتل شي، خواړه او اوبه یې هم پاک وي ترڅو ناروغه نه شي.

---

د لغتونومعنا: فارم – دچرګانو د روزلوځای ، استوګنې – د اوسېدو ځای



## د زده کوونکو فعالیت:

گرانو زده کوونکو! له چوکاټ څخه متضادې کلمې پیداکړئ اوپـــه لیکه یې ونښلوئ.

| | |
|---|---|
| ② ښه | خرڅ کړي |
| ② ډېر | بد |
| ③ ګټه | لږ |
| ④ واخلي | زیان |

له متن څخه څلور کلمې د کرښو په تشوځایوکې ولیکئ چې په (و) ختم شوي وي په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

① ______ ② ______ ③ ______ ④ ______

**کورنۍ دنده:** گرانو زده کوونکو! په خپله خوښه د یوه ښاروي نوم په خپلو کتابچو کې ولیکئ.



## اته دیرشم لوست

# د شاتو مچۍ

**موخه**: زده کوونکي باید د شاتو مچۍ وپېژني او د هغو په ګټو او ارزښت پوه شي اوهــم د دې لوست د متن لیکل او لوستل دي.



 **پوښتنې:**

(۱) په پورتني انځور کې څه شی وینئ؟

(۲) تاسو کله دشاتو مچۍ لیدلې ده؟ هغه څه ډول مچۍ ده؟

(۳) دشاتو مچۍ څخه څه شی لاس ته راځي؟

(۴) دشاتو مچۍ چېرې ژوند کوي؟

دشـــاتو مچمـــــچۍ
دارووده ستـــالکــــــۍ
خوږه ده ســـتا کوډۍ
ښایستــــــه دې کورنۍ
ټولـــنه دې کـــمکۍ
کارګره ښایســـتګۍ
یووالي کـــې خواږه
بېلـــــوالي کې ترخه

اروابناد روغمن



## دزده کوونکو فعالیت:

زده کوونکي دې دلاندې کلمو متضاد شکل له چوکاټ څخه پیدا او دکلمو ترڅنګه دې ولیکي

- خوږه ________ یووالی ________
- ښایسته

| |
|---|
| بدرنګه |
| بېلوالی |
| تریخ |



**کورنۍ دنده:** زده کوونکي دې دشاتو او مچۍ کلمې په خپلـــو کتابچو کې په تورو تجزیه کړي لکه شات (ش+ا+ت).

# نهه دېرشم لوست

# مېوې او د هغو ګټې

**موخه**: د مېوو پېژندل، دمېووپه ګټو پوهېدل او د مېوو د نومونو لیکل او لوستل دي.



**پوښتنې:**

(۱) په پورتنيو انځوروونو کې کومې مېوې وينئ ؟
(۲) تاسې څو ډوله مېوې پېژنئ نومونه يې واخلئ؟
(۳) تاسې په خپل کور کې څه ډول مېوه لرونکي ونې لرئ؟
(۴) ويلاى شئ چې کومې مېوې وچيږي؟ نومونه يې واخلئ؟

زموږ هېواد قسم، قسم مېوې لري. لکه: انګور، مڼې، ناک، شفتالو، زرد آلو، آلوبالو، ګېلاس، بهي، ختکي، هندوانې، انځر، بادام، انار او داسې نور.

مېوې بايد له خوړلو نه مخکې په پاکو اوبو ومينځل شي او بيا وخوړل شي دناپاکو مېوو خوړل ناروغي پيـــداکوي. دپـــاکو مېوو خوړل روغتيا ته ډېره ګټه لري او دانسان بـــدن غـــښتلى کوي، موږ بايد دمېوه لرونکو ونو ښاخونه مات نـــه کـــړو. او دخداى تعالى د دغه لوى نعمت په ارزښت پوه شو.

**لغتونه ، معنا: قسم قسم – ډول ډول – غښتلى –قوي**



## د زده کوونکو فعالیت:

- زده کوونکي دې د تازه مېوو نومونه واخلي او د هغــو رنګونــه دې ووايي.
- هره مېوه چې په رسموکې وينئ نوم يې په خپلو کتابچو کې وليکــئ لاندې مثال وګورئ:



زردآلو ______ ______ ______ ______ ______

- په چوکاټ کې نامکملې کلمې دليکې په وسيله له تورو سره ونــښلوئ چې بشپړې شي.

| | |
|---|---|
| آ | نه |
| ز | ک |
| هـ | نګور |
| ا | ندوانه |
| نا | الو |
| مـ | ردالو |

- زده کوونکي دې دمتن له مخې ددريو مېوو نومونه پيداکړي چې په پـــای يا مينځ کې يې د (و) توری وي.

- زده کوونکي دې د چوکاټ له مخـــې دکلمـــو ضـــد پيـــداکړي او بيـــادې دکلموترڅنګه وليکي.

| | | |
|---|---|---|
| ۱ ډېر | __________ | زيانمن |
| ۲ ګټور | __________ | لنده |
| ۳ وچه | __________ | لږ |

**کورنۍ دنده:** زده کوونکي دې د هغو مېوو نومونه په خپلو کتابچو کې وليکي چې ددوی خوښيږي.



## څلوېښتم لوست

# انګور

**موخه**: دانګورو د ډولونو پېژندل، د انګورو دګټو په هکله معلومات ورکول، د متن لوســتل او لیکل دي..



**پوښتنې:**

(۱) په پورتنیو انځورونو کې کومې مېوې وینئ ؟

(۲) ممیز پېژنئ له کومې مېوې څخه لاس ته راځي؟

انګور ډېره خوږه مېوه ده. زموږ په هېواد کــې د انګــورو باغونه ډېر دي. زموږ خلک د انګورو پالنــه کــوي او خپلــې اړتیاوې له دغې مېوې څخه پوره کوي. دغه مېوه دوه ډوله بوټي لري یو اوږد چې هغه چېله کیږي او بل لنډ بوټي دي. له انګورو څخه دوه ډوله ممیز هم لاس ته راځي یویې شنه او بل یې ســره ممیز دي.

د اومو انګورو خوړل روغتیا ته زیان رسوي. انګور باید له خوړلو څخه مخکې په پاکو اوبو پرې مینځل شي او بیا وخـــوړل شي. د پخو انګورو خوړل بدن ته ډېره ګټه لري.

د لغتونومعنا: اومه – خام ، زیان – ضرر



دزده کوونکو فعالیت:

زده کوونکي دې په ډلو کې لاندې کلمې په تورو ووېشي.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| خوږه | انګور | باغونه | ممیز | اومه |
| ___ | ___ | ___ | ___ | ___ |

په چوکاټ کې متضادې کلمې دلیک په واسطه ونښلوئ.

| | |
|---|---|
| خواږه | روږغ |
| ګټور | ترخه |
| ډېر | بې ګټې |
| ناجوړه | لږ |

کورنۍ دنده: زده کوونکي دې د(روغتیا، پرې مینځل کلمې په تورو ووېشي.



## یو څلوېښتم لوست

# سابه

**موخه**: د سبو پېژندل، له هغو څخه په سمه توګه ګټه اخیستل او د سبو د نومونو لیکل او لوستل دي.





**پوښتنې:**

(۱) په پورتنیو انځورونو کې کوم سابه وینئ؟ نومونه یې واخلئ

(۲) سابه څوک کري؟

(۳) کوم سابه خام او کوم سابه پاخه خوړل کیږي؟

---

سابه لکه: ګازرې، کاهو، وړې او اوږدې مولۍ، پالک، شنه مرچ، ګندنه، ټیپر، کچالو (پټاټې)، شنه پیاز، سره رومي، تور بانجان لېړو، (بینډۍ) او داسې نور دي. سابه زموږ بدن ته غذایي مواد برابروي. او زموږ بدن ته ډېره ګټه رسوي.

همدا راز د سبو په خوړلو کې باید ډېر پام وکړو چې مخکې له خوړلو څخه په پاکو اوبو ښه ومینځل شي او بیا وخوړل شي ترڅو ناروغه نه شو. ځینې سابه اومه او ځینې هم پاخه خوړل کیږي.



## د زده کوونکو فعالیت:

- زده کوونکي دې په ډلو وویشل شي، بیا دې دخامو ســبو د ګټو او د مینځلو په لارو چارو ځانونه پوه کړي وروسته دې له هرې ډلې یو تن خپل نظریات د ټولګي په مخ کې وړاندې کړي.

- دلاندې سابو نومونه د انځورونو له مخې په خپلو کتابچوکې ولیکئ.





- دځلورو سابو نومونه واخلئ چې هم خام اوهم پاخه خوړل کیږي:

(۱) ______ (۲) ______ (۳) ______ (۴) ______

- زده کوونکي دې درې کلمې په متن کې پیداکړي او په کتابچو کــې دې ولیکي چې د(پ) په توري پیل شي.

(۱) ______ (۲) ______ (۳) ______

- د سبو نومونه د هغو د رنګونو سره په لیکه ونښلوئ.

| | |
|---|---|
| شین | رومي بانجان |
| سور | لیمو |
| زېړ | بادرنګ |
| نارنجي | توربانجان |
| بانجاني رنګ | کدو |

**کورنۍ دنده:** **د لوست له متن څخه هغه کلمې چې د(ن) توری لري په خپلو کتابچو کې ولیکئ.**



### دوه څلوېښتم لوست

# د مور احترام

**موخه**:چې زده کوونکي د مور حقونه وپېژني! د مور د حقونو ادا کول او د دې متن سم لوستل او لیکل دی.



**پوښتنې:**

1. پوهیږئ چې ستاسو مور پر تاسو کوم حقونه لري؟
2. تاسې دخپلې مور د خدمت په هکله خبرې کولی شئ؟
3. تاسې خپلې مورته څه ډول درناوی او احترام کوئ؟

---

مور زه په خپله غېږ کې روزلی یم، اوله ماسره یې ډېر تکلیفونه لیدلي دي. پر ما ډېره مهربانه ده، د ښوونځي له تګ څخه مخکې ما ته د سبا ناری تیاروي. زه دخپلې مور او دکورنۍ له نورو غړیو سره دسبا ناری خورم، او بیا ښوونځي ته ځم. کله،کله ماته خوږې، خوږې، کیسې هم کوي چې په ډېره مینه یې اورم اوله هغې څخه خوشحاله کیږم. زه دخپلې مور ډېر درناوی کوم کله چې لوی شوم د هغې خدمت به هېڅکله هېر نه کړم.

**دلغتونومعنا: احترام – قدر. تکلیفونه – ستونزې، خدمت – چوپړ**



## د زده کوونکو فعالیت:

- زده کوونکي دې د لوست په متن کې داسې کلمې په نښه کړي چې د(م) توری په پیل، منځ او پای کې راغلی وي اوبیا دې هغه کلمې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

- زده کوونکي دې په ډلو وویشل شي او له یو بل سره دې دمور په هکله خبرې وکړي او بیادې دهرې ډلې یو زده کوونکی دټولګي مخې ته راشي او دمور په هکله دې خبرې وکړي.

**کورنۍ دنده:** زده کوونکي دې د (مور، سباناري،کیسې) کلمې په لنډو جملو کې وکاروي.



## درې څلوېښتم لوست

# له ورړو سره ټوکې کول

**موخه**: دکلمو لوستل ، ليکل او د ټوکو له ويلو سره د زده کوونکو مينه پيداکول دي.



**پوښتنې:**

(۱) آيا ستاسو کومه ټوکه زده ده که مو زده وي هغه ټوکه ووايئ؟

(۲) آيا ستاسو ته په کور کې څوک ټوکې وايي؟

يوه ماشوم په منګي کې خپل ځان وليد، نو سريې ورته وخوځاوه، هغه هم په منګي کې سر ورته وخوځاوه، ماشـــوم پلار ته غږوکړ، بابا په منګي کې څوک دی او ماته خپل ســـر ښوروي.

پلار يې چې راغی اوپه منګي کې يې خپل ځـــان وليـــد، نومنګی يې پورته کړ او په ځمکه يې وويشت چې په دا غټه تنه له ورړو سره ټوکې کوې.



## د زده کوونکو فعالیت:

- زده کوونکي دې په ډلو وویشل شي او یو بل سره دې ټوکې ووایي.

  اوبیادې دهرې ډلې یوتن راشي او خپلو ټولګیوالو ته دې یوه ټوکه

  ووایي.

- زده کوونکي دې دلوست له متن څخه څو کلمې وټاکي چې د(م) په

  توري پیل شوې وي.

**کورنۍ دنده:** زده کوونکي دې له خپلو کورنیو غړیو څخه ټوکه

واوري اوپه بله ورځ دې بیا خپلو ټولګیوالوته هماغه ټوکه

ووایي.



## څلور څلویښتم لوست

# د پلار حقونه

**موخه**: چې زده کوونکي د پلار حقونه وپیژني ، د پلار حقونه اداکړي.دا متن سم ولولي او ویـــې لیکي.



 **پوښتنې:**

(۱) په پورتني انځور کې څه وینئ؟
(۲) تاسې د خپل پلار دخدمت په هکله خبرې کولی شئ؟
(۳) تاسې خپل پلار ته څه ډول درناوی کوئ؟
(۴) پوهیږئ چې ستاسو پلار پر تاسو باندې کوم حقونه لري؟

---

پلار دکور مشر دی. پلار دخپلو ماشومانو روزنې ته پاملرنه کوي، او زیار باسي چې د ماشومانو ژوند یې ښه وي، پلار خپلو ماشومانو ته خواړه اوکالي برابروي.

نو پلار پر موږ ډېر حقونه لري. موږ باید دخپل پلار خبـــرې ومنو، په کارونو کې ورسره مرسته وکړو او دهغه درناوی وکړو، چې له موږ څخه خوشحاله وي.



## د زده کوونکو فعالیت:

زده کوونکي دې د لاندې کلمو معنا پیدا او دکرښې په واسطه ونښلوي.

| | |
|---|---|
| روزنه | احترام |
| زیار | کومک |
| ماشومان | اولادونه |
| مرسته | کوښښ |
| درناوی | پالنه |

زده کوونکي دې په ډلو ووېشل شي او دپلار دحقونو په هکله دې له یوبل سره خبرې وکړي او بیادې دهرې ډلې یوتن دټولګي مخې ته راشي او دپلار دحقونو په هکله دې نوروته خبرې وکړي.

**کورنۍ دنده:** زده کوونکي دې د(پلار، ماشومان، درناوی) کلمې په جملو کې وکاروي او بیادې په خپلو کتابچو کې ولیکي.



## پنځه څلوېښتم لوست

# نظم؟

# پلاره

**موخه**: د نظم پېژندل دي، دنظم اونثر توپیر کول له نظم ویلو سره مینه درلودل دنظم لوستل او دنظم لیکل دي.



**پوښتنې:**

(۱) که ستاسو کوم نظم یا شعر زده وي نورو ټولګیوالو ته یې په خپله ژبه ووایئ؟
(۲) زموږ دلاندې نظم عنوان څه شی دی؟
(۳) په پورتنی انځور کې څه شی وینئ؟

شپه او ورځ لګیا په کار یې | مهربـــان ته زما پلار یــې
یــې ډوډۍ پــسې روان ته | په ستـــړیانـــه یې دځان ته
یـــا په فکـــر دلباس یـــې | تل تر تله پـــه وسواس یـــې
جوړوې موږ لره کور تـــه | دراحت مویې غمخور تـــه

په تعلیم کې مو ببدار یې
مهربان ته زمـــا پلار یې

اروابناد محمد عثمان نژند



د زده کوونکو فعالیت:

- زده کوونکي دې دشعر هم وزنه کلمې په نښه کړي اوبیادې په خپلو کتابچو کې ولیکي.
- زده کوونکي دې د لاندې کلمو متضاد شکل له چوکاټ څخه پیدا او دکلمو ترڅنګه ولیکي.

شپه _____ راحت _____

ورځ _____

| |
|---|
| شپه |
| سختي |
| ورځ |

- زده کوونکي دې په وړو ډلو ووېشل شي اود پلار په هکله دې یو له بـــل سره خبرې وکړي اوبیا دې د هرې ډلې یوزده کوونکی دټولګي مخې ته راوغوښتل شي او د پلار په هکله دې خبرې وکړي.



**کورنۍ دنده: زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کـــې د(پـــلار، مهربانه، لباس، تعلیم) کلمې په جملو کې وکاروي.**

## شپږ څلوېښتم لوست

# د ماشوم څنګه درناوی وکړو؟

**موخه**: د دغه متن لوستل، لیکل او ماشومانوته دسپکوسپورو خبرو نه ویل او د هغوی مـــشوروته درناوی کول دي.



**پوښتني:**

(۱) آیا تاسي په کور کي دکور په چاروکي برخه اخلئ؟

(۲) مور او پلار له تاسو سره په کومو کارونو کي مشوره کوي؟

ماشوم ته باید سپکي سپورې خبرې ونه شي (لکه: بې عقله، بې مغزه، جاهله، ناپوهه، خره، شوټې) اوهم بې ځایه نیوکې پرې ونکړو،لکه: ډوډۍ خوړل دې هېڅ نه دي زده.

په داسې حال کې چې (دماشوم زده وي) دماشوم خبروته باید په درناوي غوږ ونیسو، پوښتنو ته یې په ورین تندي ځواب ورکړو او دکور په چاروکې ترې نظر وغواړو دبېلګې په توګه: نن شپه مېلمانه لرو تاسې ووایئ چې دمېلمنو له پاره څه شی پاخه کړو.

**دلغتونومعنا**: جاهل – ناپوه ، ورین تندی– خلاص تندی، نیوکې – انتقاد



**دزده کوونکو فعالیت:**

 زده کوونکي دې دلوست دمتن هغه کلمې چې د(هـــ) توری يې پـــه پيل، منځ او پای کې راغلي وي په نښه او په خپلو کتـــابچو کـــې وليکي.

 زده کوونکي دې دلوست دمتن د(درناوي – ماشوم – غوږ) کلمـــې په جملو کې وکاروي.



**کورنۍ دنده:** زده کوونکي دې د(بې مغزه ،ناپوهه، شوتې) کلمې په تورو باندې واړوي.

# اووه څلوېښتم لوست

# ګاونډی

موخه: زده کوونکي  باید دګاونډي په حقونو او دهغو په ارزښت پوه شي اودامتن سم ولـــولي او سم یې ولیکي.



**پوښتنې:**

١ ګاونډي چاته ویل کیږي؟
٢ تاسې دخپلو ګاونډیانو له ماشومانو سره څه ډول ناسته ولاړه کوئ؟
٣ ټول انسانان باید له یوبل سره څه وکړي؟

---

سلیم زموږ ګاونډی دی. موږ له هغوی سره ښه ناســـته او ولاړه لرو. موږ یو له بل سره مرسته کوو، په غم او ښادۍ کـــې سره شریک یو. ټول ګاونډیان باید یوله بل سره ښه رویه وکړي. او په خپل منځ کې مینه ولري.

په ښه ناسته او ولاړه کې دګاونډیتوب حق پرځای کیږي.

---

ماخذ: افغان اساسي قابلیتونه ، دپښتوله پاره دزده کړې لازمي مواد.



## دزده کوونکو فعالیت:

➕ زده کوونکي دې دلاندې کلمو تش ځایونه دچوکاټ پــه مناســبو او سمو کلمو سره ډک کړي.

ګاونډی ______

ښادي ______

مرسته ______

مینه ______

| | | | |
|---|---|---|---|
| کامک | محابت | خوشحالي | همسایه |
| کومک | محبت | خوشهالي | حمسایه |

➕ زده کوونکي دې په ډلو وویشل شي او له یوبل سره دې دګاونــډیو دحقونو په هکله خبرې وکړي.



**کورنۍ دنده:** زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې د (ګاونډی، مرسته، مینه ، ښادي) کلمې په جملو کې وکاروي.

## اته څلوېښتم لوست

# د انسانانو درناوی

**موخه**: د دغه متن لوستل، لیکل او زده کوونکي باید په دې پوه کړل شي چې ټــول انــسانان د درناوي وړدي.



**پوښتنې:**

(۱) هغه خلک چې سپین ږیري او مشران دي دهغوی څه ډول درناوی کوئ؟

(۲) تاسې خپلې مور، پلار، وروڼو او خویندو ته درناوی کوئ؟

ټول انسانان که ښځېنه دي او که نارینه، که ځوانان دي او که ماشومان د درناوي وړ دي، ښه ماشــومان او زده کــوونکي همېشه د ټولو خلکو درناوی کوي.دمشرانو او سپین ږیــرو پــه خبرو کې نه لوییږي.

ښه زده کوونکي د مشرانو خبرې مني. په لاره کې دمشرانو څخه مخکې نه ځي، هغه ماشومان او زده کوونکي چې د خپلــې کورنۍ او خلکو درناوی په پام کې ساتي خلک له هغوی څخه تل خوشحاله وي.



### د زده کوونکو فعالیت:

- زده کوونکي دې د لاندې کلمو مفرد شکل له چوکاټ څخه وټـــاکي اود جمعي کلمو مخې ته دې هغه ولیکي.

| | | | |
|---|---|---|---|
| انسانان | ______ | ماشومان | ______ |
| ځوانان | ______ | مشران | ______ |

**انسان ماشوم مشر ځوان**

- زده کوونکي دې په ډلو وویشل شي او له یوبل سره دې دمشرانو او سپین ږیرو د درناوي په هکله خبرې وکړي او بیا دې د هرې ډلې یوتن راشي او دمشرانو د درناوي په هکله دې نورو ټولګیوالوتـــه معلومات وړاندې کړي.

- زده کوونکي دې د لوست له متن څخه داسې کلمې وټاکي چې د (ن) توری دکلمې په پیل،منځ او پای کې راغلی وي.

**کورنۍ دنده:** **زده کوونکي دې د(انـــسانان، احتـــرام، خبـــرې، خوشحاله) کلمې په خپلو کتابچو کې په تــــورو بانـــدې واړوي.**



## نهه څلوېښتم لوست

# د خبرو کولو ادب

**موخه**: زده کوونکي باید دخبروکولو په اهمیت پوه شي او دا متن سم ولولي او سم يې وليکي.



 **پوښتنې:**

(۱) کله چې په مجلس کې یو څوک غږیږي تاسو ورته څه ډول غوږ نیسئ؟

(۲) دنورو خبروته په سمه توګه غوږ نیول څه ګټه لري؟

د خبرو کولو په وخت کې باید د خبـــرو ادب وســـاتل شي. کله چې زموږ ملګری اویا یوڅوک له موږ ســـره خبـــرې کوي. موږ باید د هغه خبروته غوږ ونیسو او په خبرو یې ځان پوه کړو. که چېرې څوک له موږ څخه پوښتنه کوي باید په خـــورا ادب سره د هغه پوښتني ته ځواب ورکړو. باید د بـــل چـــا پـــه خبروکې بې ځایه ورګډ نه شو. او تل دخبرو وار په پـــام کـــې وساتو.



**د زده کوونکو فعالیت:**

- زده کوونکي دې د لوست په متن کې هغه کلمې چې د (ب) توری يې په پيل، منځ اوپای کې راغلي وي په نښه کړي اوبيا دې په خپلو کتابچو کې وليکي.

- زده کوونکي دې د لاندې چوکاټ له تورو څخه دکرښې پــه واســطه مناسبې کلمې جوړې کړي.

| | |
|---|---|
| خــ | ت |
| وخــ | ی |
| اد | ړ |
| ملګر | بت |
| غو | ب |
| نو | برو |

- زده کوونکي دې په ډلوکې له يوبل سره د خبروکولو د ادب پــه هکلــه خبرې وکړې او بيا دې د هرې ډلې يو زده کوونکی د ټولګي مخې ته راشي او د خبروکولو د ادب په هکله دې نوروته معلومات ورکړي.



**کورنی دنده:** لاندې کلمې په تورو واړوئ او بيايې په خپلو کتابچو کې وليکئ (خبرې، ادب، ملګري، پوښتنه)

# پنځوسم لوست

# د سلام کولو ادب

**موخه**:چې زده کوونکي دسلام اچولو په ادب او د هغو په ګټو وپوهيږي او په عملي توګــه يــې اجرا کړي او د دې متن لوستل او ليکل دي.



**پوښتنې:**

(۱) که پر لاره باندې مشران او يا سپين ږيري خلک ووينئ څه ورته وايئ؟

(۲) کله چې خپل پلار، مور او يا دکور بل غړی ووينئ ستاسو دنده ددوی په وړاندې څه ده؟

ښه زده کوونکي کله چې ټــولګي تــه ننــوځي خپــل ښوونکي او ټولګيوالو ته سلام کوي کله چې له ښوونځي څخه دکور په لورځي په کور کې خپلې مــور، پــلار، ورونــو او خويندو ته سلام اچوي، همداراز په لاره کې د سپين ږيــرو، مشرانو او ګاونډيانو آداب هم په پام کې ساتي او هغوی تــه سلام اچوي.



**د زده کوونکو فعالیت:**

- له لاندي توروڅخه کلمې جوړی کړئ او بیا یې په تشو چوکاټونو کې ولیکئ.

| س + ل + ا + م | ا + د + ا + ب | م +ش + ر + ا + ن |
| --- | --- | --- |
| | | |

- زده کوونکي دې په ډلو وویشل شي او دسلام اچولو ادب په هکله دې له یوبل سره خبرې وکړي او بیادې ښوونکی دهرې ډلې یو زده کوونکی دټولګي مخې ته را وغواړي چې دسلام اچولو په هکله خبرې وکړي.
- زده کوونکي دې د لوست په متن کې هغه کلمې په نښه کړي چې د(م) توری یې په سر، منځ اوپای کې راغلی وي بیا دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.



**کورنۍ دنده:** د لوست له متن څخه په خپله خوښه څو کلمې وټاکئ اوهغه په خپلو کتابچو کې په حروفو ولیکئ.

# یو پنځوسم لوست

# ډوډۍ

**موخه**: زده کوونکي باید پوه شي چې لومړی  غنم کرل کېږي او له غنمو څخه اوړه لاس ته راځي او بیـــا له اوړو څخه ډوډۍ پخېږي او د ډوډۍ د لوست متن لوستل اولیکل دي.






**پوښتنې:**

(۱) په پورتني انځور کې څه شی وینئ؟
(۲) تاسو دغنمو دکرلو په هکله څه ویلای شئ؟
(۳) له غنمو څخه شی لاس ته راځي؟

غنم  چې  شنـــه  شي
لوی  شي  پاخـــه  شي
اوبـــیا  اوړه   شـــي
خمـــیره  ښـــه  شي
پـــه  تنـــاره  شـــي
ډوډۍ  خـــواږه  شي
خلـــک  ماړه  شـــي
کارلـــره  جوړ  شي
وږی  چې  مـــوړ  شي

اروابښاد روغمن








**دزده کوونکو فعالیت:**

 زده کوونکي دې په ډلو کې له يوبل سره دغنمو دکرلو په هکله خبرې وکړي اوبيادې دهرې ډلې يو زده کوونکی دټولګي مخې ته راشي او غنمو دکرلو په هکله دې نوروته معلومات ورکړي.

 زده کوونکي دې دلوست دمتن هم وزنه کلمې په نښه او پــه خپلــو کتابچو کې وليکي. لکه شنه – پاخه

 زده کوونکي دې له لاندې توروڅخه کلمې جوړې کړي او دچوکاټ په تشو ځايونو کې دې وليکي.

| | | | |
|---|---|---|---|
| غ + ن + م | ا+ و + ړ + ه | ډ+و + ډ+ ی | و + ږ + ی |
| | | | |

**کورنۍ دنده:** زده کوونکي دې په کور کې له خپلو مشرانو څخه پوښتنه وکړي چې له اوړوڅخه څه، څه شيان پخيــږي او بيادې په ټولګي کې نوروته ووايي.



## دوه پنځوسم لوست
# ناولي سابه

**موخه**:چې زده کوونکي متن ولوستلی شي، ويې ليکی د چټلو او ناپاکو سبو د خوړلو په زيانونو باندې پوه شي.



**پوښتنې:**

(۱) په پورتني انځور کې څه شيان وينئ خبرې پرې وکړئ؟
(۲) دناولو سبو خوړل سړي ته څه زيان رسوي؟
(۳) تاسې ناولي سابه په څه شي مينځئ؟

يوه ورځ كاهو، ګندنې ته وويل: چې اې ګندنې! ځينې ماشومان زموږ خوړلو ته ډېر هوسيږي او خوشحالي کوي. دوی زموږ په سموخوړو نه پوهيږي. نامينځلي مو د دسترخان په مخ ږدي او په خوړلومو لګيا کيږي.

خو کله چې ددوی په ګېډه باندې لږ درد راشي. سمدلاسه يې مور، پلار او کورنۍ وارخطا کيږي. نو زموږه سپارښتنه دغو نازولو ماشومانو ته دا ده مخکې له دې چې موږ په دسترخان خوړلو ته تياروي په کار داده چې دوی لومړی پټاس اويا لږه مالګه په اوبوکې حل کړي او موږ پرې ومينځي. کله چې له ميکروبونو څخه پاک شو بيا دخوړلو وړګرځو اوپه خوند، خوند د ې موږ وخوري. ترڅو دوی ناروغه نه شي.



**دزده کوونکو فعالیت:**

- زده کوونکي دې په ډلو ووېشل شي او دناولو سبو دخوړلو په هکلــه دې له يوبل سره خبرې وکړي چې دناولوسبو خوړل روغتيا ته زيان لري.

- زده کوونکي دې د لوست په متن کې هغه کلمې چې د(ر) توری يـــې پـــه سر، منځ اوپای کې راغلی وي په خپلو کتابچو کې وليکي.

- له لاندې ورکړل شويو توروڅخه دې کلمې جوړې او په چوکاټ کې دې وليکي.

س + ا + ب + ه        م + ی + ن + ځ + ل + ی

**کورنۍ دنده:** زده کوونکي دې په خپله خوښه د هغو سبو نومونه په خپلو کتابچو کې وليکي چې هم اومه خوړل کېږي اوهم پاخه.



## درې پنځوسم لوست

# روغ پاتې کېدل

موخه: د دې لوست موخه داده چې زده کوونکي دسالم بدن دپاتې کېدو په اړتیا او دهغه په ارزښـــت پـــوه شي اودمتن لیکل اولوستل دي.





پوښتنې:

(١) په پورته انځورونو کې څه شیان وینئ خبرې پرې وکړئ؟

(٢) تاسې څرنګه کولی شئ چې بدن مو سالم او روغ وي؟

(٣) آیا تاسې پاک خواړه خورئ، پاکې اوبه څښئ اوسپورت کوئ؟ خبرې پرې وکړئ.

---

د انسان د بدن دروغ پاتې کېدو له پاره مرستې تـــه اړتیـــا لري. ښه خواړه، دپاکو اوبو څښل، سپورت کول، اوپه وخـــت سره خوب کول بدن ته ګټه رسوي. په خوړو کې باید له هر ډول خوړو لکه: غوښې، سابه، نخودو، وریجـــو، مېـــوې او داســـې نوروڅخه ګټه واخیستل شي. ښه او مناسب خواړه دروغتیا لـــه پاره ضروري دي.

د پاکو اوبو څښل دخوړو په هضمولو کې پـــوره مرســـته کوي. سپورت کول دانسان دبدن هډوکي او غړي غښتلی کوي. هر انسان په یوه شپه او ورځ کې له ۷ څخه تر ۸ ساعتونو پورې خوب ته اړتیا لري، که غواړئ چې بدن مو روغ وي، نو پورتنی خبرې په پام کې وساتئ.

---

ماخذ: افغان اساسي قابلیتونه دپښتو له پاره دزده کړې لازمي مواد.



د زده کوونکو فعالیت:

- زده کوونکي دې دلوست له متن څخه هغه کلمې چې د(غ) توری یې پـــه سر، منځ او پای کې راغلی دي په خپلو کتابچو کې ولیکي.

- زده کوونکي دې په ډلو ووېشل شي او د روغ پاتې کیدو په هکله دې له یوبل سره خبرې وکړي.

- زده کوونکي دې دلاندې پوښتنې سم ځواب پیدا اوپه نښه کړي، کوم شیان دبدن دروغ پاتې کېدو له پاره مرسته کوي؟

الف – ښه خواړه، دپاکو او بوڅښل، سپورت کول او خوب کول.

ب –ډېر خواړه خوړل

ج – خوب نه کول

کورنۍ دنده: زده کوونکي دې د لوست له متن څخه څلور کلمې وټاکي او بیا دې یې په خپلو کتابچو کې په تورو ولیکي.



# څلور پنځوسم لوست

# ماین څه شی دی؟

**موخه**:چې زده کوونکي ماینونه وپېژني او دهغو له خطرونو څخه ځانونه وساتي.





**پوښتنې:**

(۱) آیا تاسو ماینونه لیدلي دي؟ که مو لیدلي دي خبرې پرې وکړئ؟

(۲) که چېرې تاسې له ماین سره مخامخ شئ څه کوئ؟

ماین یو ډېر خطرناک شی دی. انسانان او حیوانات له منځه وړي. ځینې ماینونه دقلم، ساعت، توپ، رادیو او نورو شیانو په څېر په لارو، سړکونو، پلونو او ویالو کې ځای پر ځای کیـــږي. باید لاس ورنه وړئ ځکه چې هغه چوي او سړی له منځه وړي. اویا مو ټپي کوي. هغه ځایونه چې په سره رنګ سره په نښه شوي دي تګ اوراتګ پرې مه کوئ.



## دزده کوونکو فعالیت:

- زده کوونکي دې دلاندې پوښتنو سم ځواب پیدا اوپه نښه کړي.

۱–ماینونه په کومو ځایونو کې موندل کیږي؟

الف: په سیندونوکې ب: سړکونو کې ج: په لارو، سړکونو، پلونو او ویالوکې

- زده کوونکي دې په ډلو وویشل شي او له یوبل سره دې دماین دخطرونو په هکله خبرې وکړي.اوبیادې دهرې ډلې یو زده کوونکی دټولګي مخې ته راشي اودماین دخطرونو په هکله دې خبرې وکړي.

- زده کوونکي دې دلوست په متن کې داسې کلمې پیداکړي چې د(م) توری يې په سر، منځ او پای کې راغلی وي اوبیادې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

**کورنۍ دنده:** زده کوونکي دې د (ماین، ټپي، خطرناک) کلمې په خپلو کتابچو کې هېجا کړي.



## پنځه پنځوسم لوست

# روغتیا

موخه:چې زده کوونکي د پاکۍ په ارزښت او ګټو پوه شي او شعرسم ولولي او سم یې ولیکي.





پوښتنې:

(۱) پاکوالی څه ګټې لري؟

(۲) که چېرې مور خپل ځان پاک او سوتره ونه ساتو څه پېښیږي؟

(۳) مور څه وکړو چې ناروغه نه شو؟

پاک ساتــم لاســونه مې
پاک ساتــم غاښــونه مې
پاکــې جامــې اغــوندم
پــاک ســاتم بوټونه مې
پاک خـــواړه اوبه غوارم
پاک ســاتم ځــایونه مې
پاک مرغان ښایسته ښکاري
پاک ساتــم مالونه مــې
پاک ژوندکي خوشحاله یم
پاک دي ټول کارونه مې
ښکلــی پــه پاکۍ یمــه
ګــل دکـــورنۍ یمــه

اروابنادروغمن



### دزده کوونکو فعالیت:

- زده کوونکي دې لاندې بې ترتیبه کلمې په ترتیب سره ولیکي.

مې، ساتم، پاک، لاسونه ______

- زده کوونکي دې دلاندې کلمو معنا له چوکاټ څخه پیدا او ترڅنګ دې ولیکي.

الف: جامې ______

ب: مرغان ______

ج: ښکلي ______

| |
|---|
| کالي |
| الوتونکي |
| ښایسته |

**کورنۍ دنده:** زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې د(روغتیا، لاسونه، غاښونه، خواړه) کلمې په جملو کې وکاروي.



## شپږ پنځوسم لوست

# واکسین کول

**موخه**:زده کوونکي باید د واکسین د ګټو په ارزښت پوه شي او هم د متن لوستل او ليکل زده کړي.





**پوښتنې:**

(۱) آیا تاسو خپل ځانونه واکسین کړي دي؟ واکسین څه ګټې لري؟

(۲) واکسین سړی دڅه شي څخه ساتي؟

(۳) تاسي پخپل کلي کې دواکسین کلينيک لرئ؟ او که لرئ خبرې وکړئ؟

واکسین کول ماشوم له يو شمېر ناروغيو څخه ساتي، هغه ماشومان چې واکسین شوي نه وي، ډېر امکان لري چې هغوی د موادو په کمښت يا معلوليت اخته شي، اويا مړه هم شي. د واکسین کول د ماشومانو له پاره ډېر ضرور دي.

د واکسينونو ټول ډولونه بايد د ماشوم د ژوندانه په لومړي کال کې ولګول شي. ميندې اوپلرونه بايد کوښښ وکړي چې خپل ماشومان د واکسین کولو کلينيک ته بوځي او هغوی واکسین کړي.

**د لغت معنا: معلوليت – عيبجن**

ماخذ: افغان اساسي قابليتونه پښتو له پاره دزده کړې لازمي مواد.



**د زده کوونکو فعالیت:**

- زده کوونکي دې په ډلو وویشل شي او د واکسین کولو دګټـو پـه هکله دې خبرې وکړي او بیا دې هره ډله خپل نظریات نوروتـه ووایي.

- په ورکړل شوي متن کې هغه کلمې پیداکړئ چې د یو وار څخه زیاتې راغلې وي لکه: (واکسین)

- زده کوونکي دې د (واکسین، ماشومان، معلولیت، کلینیک) کلمـې په تورو ووېشي.



**کورنۍ دنده:** زده کوونکي دې په خپله خوښه دلوست دمتن څخه څو کلمې وټاکي او هغه دې په تورو ووېشي.

# اووه پنځوسم لوست

# د ځان پاکوالی

**موخه**: د دې لوست موخه د پاکوالي په هکله معلومات او د هغه ګټې دي او هم د متن لوستل اوليکل دي.






**پوښتنې:**

(۱) په پورتنيو انځورونو کې څه وينئ خبرې پرې وکړئ؟
(۲) که غواړو چې تل روغ واوسو نوڅه وکړو؟
(۳) ولې ځان پاک ساتو؟
(۴) که چېرې خپل پاکوالي ته پام ونه کړو څه پېښيږي؟

توريالی او محمود د دوهم ټولګي زده کوونکي دي. دوی ښه ملګري دي، تل له يوبل سره لوبې کوي، خپل درسونه يوځای لولي. يوه ورځ تورياليٰ محمود ته وويل چې محموده! دځان دپاکوالي په هکله معلومات لرې؟ هغه ورته وويل: هو! پاکوالی دايمان يوه برخه ده، هرڅوک پاکوالي او روغوالي ته اړتيا لري. دخپل ځان دپاک ساتلو له پاره لازم دي چې بدن او کالي هميشه پاک وساتو. وروسته له تشناب تللوڅخه خپل لاسونه په صابون پاک پرې مينځو، بايد پام وکړو چې له خوړوڅخه مخکې هم خپل لاسونه پرې مينځو

او بیا ډوډۍ وخورو، پاکوالی زمونږ بدن تندرسته کوي او له ناروغیو څخه موږ ژغوري.



**دزده کوونکو فعالیت:**

- زده کوونکي دې په ډلو وویشل شي او دځان دپاکوالي په هکله دې یوبل سره خبرې وکړي بیادې هره ډله خپل نظريات نورو ته واوروي.

- زده کوونکي دې له ورکړل شوو توروڅخه مناسبې کلمې جوړې کړي. (پ – ا – که – و – ا –ل – ی) (ا– ی– م – ا – ن)

(ا – ړ – ت – ی – ا)

- زده کوونکي دې د لوست له متن څخه دوه توریزې او درې توریزې کلمې په نښه کړي او بیا دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.



**کورنۍ دنده:** لاندې کلمې په خپلو کتابچو کې په تورو وویشئ

( لوبې – روغوالی – لاسونه – صابون – پیاوړی)

## اته پنځوسم لوست

# د مخدره موادو زيانونه

موخه: چې زده کوونکي د مخدره موادو په زيان او ضرر پوه شي او هم د متن لوستل او ليکل زده کړي.







پوښتنې:

(۱) په پورتني انځورکې څه وينئ خبرې پرې وکړئ؟

(۲) سګرټ، چرس، نسوار او نور نشه يي مواد ولې بد عملونه دي؟

(۳) څوک چې سګرټ، چرس او نسوار څکوي د هغو نه خلک ولې کرکه کوي؟

سګرټ، چرس، نسوار څکول او د نورو نشه يي موادو کارول ډېر ناوړه عملونه دي. لوی خدای (ج) دانسان په دغو ناوړو عملونو نا راضه کيږي، دا عملونه روغتيا ته ډېر زيان رسوي.

د نشه يي سړي څخه هر څوک کرکه کوي. ناسته او ولاړه ورسره نه کوي که وغواړو چې بدن مو روغ او رمټ وي، نو په کار دا ده چې سړی له دغو بدو عملونو څخه ځان وژغوري.



**دزده کوونکو فعالیت:**

- زده کوونکي دې په ډلو ووېشل شي او له يوبل سره دې د مخـــدره موادو نومونه او د زيانونو په هکله خبرې وکړي او بيا دې هره ډله نظريات نورو ته واوروي.

- زده کوونکي دې د لوست په متن کې اته داسې کلمې پيداکړي چې د (س) توری په کې راغلي وي او په خپلو کتابچو کې دې وليکي.



**کورنۍ دنده:** زده کوونکي دې په خپله خوښه دلوست له متن څخه پنځه کلمې په خپلو کتابچو کې وليکي.

# نهه پنځوسم لوست

# سوله او ماشومان

**موخه**: د دغه لوست لیکل او د سولې په ارزښت اوارتیا پوهېدل اوپه عمل کې یې پلي کول دي او د دې لوست متن لیکل اولوستل دي.





**پوښتنې:**

١ تاسې له خپلو ګاونډیو او همزولو سره څه ډول ناسته ولاړه کوئ؟

٢ کله چې ستاسو د دوو ټولګیوالو په منځ کې خپګان پېښ شي د هغه دحل له پاره څه کولی شئ؟

---

ځدراڼ او د ده ملګري له بېلابېلو ولایتونو اوقومونو څخه دي دوی د یوبل ښه ګاونډیان دي. ځدراڼ له خپلو ملګرو سره لوبې کوي. دی هېڅکله له هغوی سره په لوبو کې لانجې نه کوي.

دده ملګري هم ښه هلکان دي. دوی په خپل منځ کې لکه د یوې کورنۍ دغړو په خبر په روغه جوړه کې خپلو لوبو ته دوام ورکوي او خپل کارونه په ګډې همکارۍ سره سرته رسوي.



## دزده کوونکو فعالیت:

- زده کوونکي دې د لاندې کلمو څخه جملې جوړې اوپه کتابچو کې دې ولیکي. (ملګري، ګاونډي، قومونه )

- له چوکاټ څخه دکلمو مفرد پیدا او پر کرښه یې ولیکئ.

| | |
|---|---|
| قومونه ________ | ملګرى |
| هلکان ________ | قوم |
| ملګري ________ | هلک |

**کورنۍ دنده:** زده کوونکي دې د خپلو ښو ملګرویو،و صفت په کتابچو کې ولیکي او جمله دې ترې جوړه کړي.



# شپېتم لوست

# زغم (صبر)

**موخه**:د دغه متن لوستل ليكل او په ټولنيز ژوند کې د زغم اوصبر کولو په ارزښـــت او اهميـــت پوهيدل دي.



 **پوښتنې:**

(۱) په پورتني انځورکې څه وينئ خبرې پرې وکړئ؟

(۲) تاسې دزغم اوصبر په هکله څه پوهيږئ خبرې پرې وکړئ؟

کله کله ماشومان او زده کوونکي په لوبو کې په يوټاکلي شـــي باندې شخړې اولانجې کوي چې يو په بل باندې بې ځايـــه تيـــرى کوي. په دغه وخت کې د ماشومانو اوزده کوونکو له پاره په کـــار دا ده چې د شخړو او لانجو پرځاى د زغم او خبرو کولو څخه کار واخلي. او په دې هکله دې فکر وکړي چې شخړه اولانجـــه بـــه کارنه دى، زموږ دوستي او ملګرتيا ورانوي، ماشومانو ته په کـــار ده چې په خپل منځ کې هېڅکله شخړې ونه کړي.

---

**دلغتونومعنا**: زغم – صبر او حوصله، لانجه – جنجال کول



## دزده کوونکو فعالیت:

- زده کوونکي دې د چوکاټ ورته او هم معنا کلمې د کرښې پــه واســطې ســره ونښلوي.

| | |
|---|---|
| زغم | ملګرتیا |
| لانجې | دوستي |
| تیرى | تیرى |
| شخړې | زغم |
| دوستي | شخړې |
| ملګرتیا | لانجې |

- د لوست اصلي مطلب څه شی دی سم ځواب په نښه کړئ:

الف: د زغم او صبر په هکله خبرې اورېدل دي.

ب: په لوبوکې د شخړو او لانجو نه کار اخیستل دي.

ج: د شخړو پرځای د زغم او صبر نه کار اخیستل دي.

**کورنۍ دنده:** زده کوونکي دې له لاندی توروڅخه کلمې جوړې او په خپلو کتابچو کې دې ولیکي (ش – خ – ړ – ه) (ز – غ – م ) (ص – ب – ر)
( د – و – س – ت – ي)



# يو شپېتم لوست

# رښتيا ويل

**موخه**:د دغه متن لوستل، ليکل او د رښتيا ويلو په ګټو باندې د زده کوونکو پوهېدل دي.




**پوښتنې:**

١ رښتيا ويل څه ګټه لري؟

٢ د روغجن سړی ولې دخلکو نه خوښيږي؟

لوی الله (ج) د رښتيا ويلو څخه خوشحاله کيږي. څوک چې رښتيا وايي هرڅوک يې په خبرو باور کوي. او په خلکو کې اعتبار پيداکوي. مورې ته لازمه ده چې تل له خپلې کورنۍ، ګاونډيانو او دوستانو سره په رښتيا ويلو ژوند وکړو. اوله دروغو څخه ځان وژغورو.



## د زده کوونکو فعالیت:

- زده کوونکي دې په خپلو ډلو کې په نوبت سره د خپلو هغو دوستانو د ښيګڼو په هکله خبرې وکړي کوم چې رښتيا وايي.

- زده کوونکي دې د لاندې چوکاټ له مخې له تورو څخه کلمـــې جـــوړې کړي.

| ر | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ښتيا | وښان | وغتيا | مه | ڼا | وشې |

**کورنۍ دنده:** لاندې درکړل شوې کلمې د جملو په تشو ځايونو کې وکاروئ او بيايې په خپلو کتابچو کې وليکئ. ( رښتيا، دروغ )



څوک چې ـــــ وايي هرڅوک يې په خبروباور کوي.

مور ته لازمه ده چې له ــــــــــ څخه ځان وژغورو.

## دوه شپېتم لوست

# دوستي او ملګرتيا



**موخه:** د دغه متن لوستل، ليكل او د دوستۍ لارې چارې پېژندل دي.



**پوښتنې:**

١ آيا تاسې دوستان لرئ؟ د هغوی نومونه واخلئ؟

٢ آيا تاسې كوم وخت له خپل دوست سره كومه مرسته كړې ده هماغه مرسته دكيسې په توګه وكړئ؟

٣ دوه دوستان په كوم وخت كې يوله بله سره مرسته كولی شي؟

زړكی او غمی په يوه ټولګي كې درس لولي. دوی يو له بل سره ښه دوستي او ملګرتيا لري. يوه ورځ غمي له زړكي څخه پوښتنه وكړه:

راتلونكې جمعې ته به د تفريح له پاره كوم ځای تــه ځــو؟

زړكي وويل:

د كلي بڼ ته به ولاړ شو چې د هغه له منځ څخه داوبو وياله تېره شوې ده هلته به لامبو ووهو. د باغ ترسيوري لاندې به لوبې وكړو او د ډوډۍ خوړلو څخه به وروسته ورو، ورو خپل كورته راشو. غمي د خپل ملګري دخبرې له اورېدو وروسته له هغه سره پرېكړه وكړه چې د راتلونكې جمعې په ورځ به هماغه باغ ته ځو.

**د لغتونو معنا:** تفريح – ساعتيري، پريكړه – فيصله



**د زده کوونکو فعالیت:**

زده کوونکي دې په خپلو ډلو کې په نوبت سره د ټولګي مخـــې تــه راشي او د خپلو ملګرو دښيګڼو په باره کې دې خبرې وکـــړي او نور زده کوونکي دې غوږ ونيسي.

د لاندې چوکاټ له مخې له تورو څخه کلمې جوړې کړئ؟

| | | | |
|---|---|---|---|
| | | | د |
| وی | رس | وستان | وستي |



**کورنۍ دنده:** زده کوونکي دې لاندې کلمې په تورو واړوي.

**( زړګی،ملګرتيا، وياله، باغ)**

# درې شپېتم لوست

# د ستورو شمېر

**موخه**: د دغه متن لوستل، لیکل او زده کوونکي باید پوه شي چې ستوري نه شمېرل کېږي.





**پوښتنې:**

(١) په انځورکې څه شی وینئ؟ څوک خبرې کولی شي؟

(٢) تاسو څه وخت په آسمان کې ستوري وینئ؟

(٣) پرته له ستورو څخه نور کوم شیان په آسمان کې وینئ؟

یوه سړي له بل نه پوښتنه وکړه چې په آسمان کې څو ستوري دي. هغه ورته وویل چې: (لس لکه) ده ورته وویل: دا سم ځواب نه دی. هغه ورته وویل: نو ورشه ته یې په خپله وشمېره.

## کیسی

څلور یې اندامونه، څلور یې پښې دي، نور ګرد سره کولمې دي، داڅه شی دی؟ (کټ)



**د زده کوونکو فعالیت:**

- زده کوونکي دې په ډلو ووېشل شي او له يوبل سره دې په دې هکله چې د شپې په آسمان کې څه شیويني خبرې وکړي او بيا دې هره ډله خپل نظريات نوروته ووايي.

- زده کوونکي دې دلوست په متن کې د(س) توری پيدا کړي چې دکلمې په سر، منځ او پای کې راغلی وي بيادې په خپلو کتابچو کې وليکي.

- زده کوونکي دې لاندې کلمې په تورو باندی واړوي
(پوښتنه، آسمان، ستوري، وشمېره )

- زده کوونکي دې دکيسې سم ځواب پيداکړي او بيا دې په خپلــو کتــابچو کــې وليکي.

**کورنۍ دنده:** له لاندې تورو څخه کلمې جوړې کړئ.



(س + ت + و + ر+ي) (ش + م + ي + ر)

# څلور شپېتم لوست

# مېږی او کوتره

**موخه:**چې زده کوونکي د دې کیسې په لوستلو او لیکلو سره د مرستې په ګټو او ارزښت پوه شي او د اړو خلکو سره دې د خپلې وسې په توان مرسته وکړي.









**پوښتنې:**

(۱) په پورتنیو انځوروونو کې څه وینئ؟
(۲) مرسته څه ته وايي؟
(۳) د مرستې په هکله خبرې کولی شئ؟
(۴) خدای (ج) مه کړه که ستاسو له ټولګیوالو څخه یو له کومې ستونزې سره مخامخ شي تاسو ورسره څه مرسته کولی شئ؟

یوه ورځ یومېږی په ډنډ کې لوېدلی و، لاس اوپښې یې وهلې، له اوبونه وتلی نه شو. یوه ښکلې کوتره چې پاس د ونې پر ښاخ ناسته وه. زړه یې پرې وسوځېده، یوه پاڼه یې په منښوکه پرې کړه او په ډنډ کې یې دمیږي مخ ته واچوله. مېږی په پاڼه راوخوت او له مرګ څخه وژغورل شو.

بله ورځ هماغه کوتره په ونه کې ناسته وه، ښکاري پټ، پټ راغی، غوښتل یې چې کوتره په ټوپک وولي او راویې غورځوي میږي ته چې د کوترې نیکي او مرسته وریاده شوه، راغی او ښکاري یې په پښه وچیچه، ښکاري ټوپ کړ او کوتره والوته.

ماخذ: مېږی او کوتره ، افغانستان نشراتي اداره (انا)



### د زده کوونکو فعالیت:

- زده کوونکي دې په وړو ګروپونو ووېشل شي او له یوبـــل ســـره دې دمرستې او همکارۍ په هکله خبرې وکړي او بیادې دهرګـــروپ یوغړی دټولګي مخې ته راشي اود مرستې اوهمکارۍ په هکله دې نورروته خپل معلومات وړاندې کړي.

- زده کوونکي دې د لاندې کلموجمع پیـــدا اودکلمـــو ترڅنګـــه دې ولیکي.

ورځ ______ لاس ______

ډنډ ______ کوتره ______

**کورنۍ دنده:** زده کوونکي دې د (مېږې، کوتره، ښکاري، نیکي) کلمې په جملو کې وکاروي او بیا دې په ښکلي لیک سره په خپلو کتابچو کې ولیکي.



# پنځه شپېتم لوست

# وېره

**موخه:**د دغه متن لوستل، لیکل، دوېرې پېژندل او له وېرې څخه ځان ساتل دي.



**پوښتنې:**

(۱) په انځور کې څه شی وینئ؟ خبرې پرې وکړئ اوله انځورڅخه څه احساس کوئ؟

(۲) آیا تاسي له کوم حیوان څخه ویرېدلي یاست؟

(۳) داسې یوڅوک چې وېرېدلی وي تاسو لیدلی دی؟

احمد ښوونځي ته روان و، په لاره کې یې له لـــرې څخــه یوسپی ولید. په وېره دکور خواته را وګرځېده په کورکې یې مور پوښتنه ترې وکړه: احمده زویه! ولې ښوونځي ته نه یې تللـــی؟ احمد ځواب ورکړ: مورجانې! په لاره کې له یوه ســـپي څخــه ووېریدم.د هغه له وېرې څخه مې نه شو کولی چې ښوونځي تــه لاړ شم. مورېې بیا وویل: زویه سپی غټ و که کوچنی؟ احمـــد وویل: چې نه سپی کوچنی و او ماته یې کتل.

مور یې په خندا شوه او ویې ویل: زوی جانه! سپي ته بـــه دې یوه مړۍ ډوډۍ اچولې وه هغه به له تاسره آشنا یې پیداکړې وای.

سپیوته چې آزار ونه رسېږي چاته څه نه وایي او ډېر ژر لـــه سړي سره اموخته کیږي اوبیا به هېڅکله ترې ونه وېرېږې.

**دلغتونومعنا:** سوچ– فکر، پیاوړې – قوی او غښتلی، ستونزې – مشکلات



**د زده کوونکو فعالیت:**

زده کوونکي دې په وړو ډلو ووېشل شي او د لوست د متن یوه یـــوه کلمه دې یوبل ته داملا په توګه ووایي.



زده کوونکي دې لاندې کلمې په تورو باندې واړوي.

( وېره، سپی، څواب، غټ، کوچنی، ډوډۍ، آزار)



دلاندې جملو تش ځایونه دچوکاټ په مناسبو کلمو سره ډک کړئ.

| | |
|---|---|
| احمد ___________ ته روان و. | سپی |
| په لاره کې یې دلېرې نه یو _______ ولید. | وېره |
| په _______ دکور خواته راوګرځید. | پوښتنه |
| په کور کې یې مور ________ ترې وکړه. | کوچنی |
| احمد وویل: چې نه سپی ______ و اوماته یې کتل. | ښوونځی |

**کورنۍ دنده:** زده کوونکي دې له لاندې ګډوډو کلمو څخه سمه



جمله جوړه کړي.

**نه وایي، سپیوته، آزار، چې، ونه رسیږي، چاته،څه**

## شپږ شپېتم لوست

# دښمني او دوستي

**موخه**: د دغه لوست موخه دا ده چې زده کوونکي د متن په لوستلو او ليکلو د دوستۍ په ګټو او د دښمنۍ په زيانونو پوه شي او په دې وپوهيږي چې دوستي نېکمرغي رامنځ تــه کــوی او دښـــمني بدمرغي رامنځ ته کوي.





**پوښتنې:**

(۱) ويلی شئ چې دښمني ولې ښه کار نه دی؟

(۲) څوک چې له بل چاسره خوشې دښمني کوي پايله يې څه ده؟

(۳) موږ د دښمنۍ پرځای څه وکړو؟

(۴) آيا تاسو خپلو ملګرو سره څه ډول ناسته ولاړه کوئ.

### دښمني

موږک پيشو نه تښتي　　سپی له زمــــرونه تښتي

دا دښـــــــمني بده ده　　دا بـــد بيني بـــــــده ده

### دوستي

راستي دوستي ټينګـــوي　　راستي خپلوي ټينګــــــوي

ژوندکي رښتيا وايه تـــل　　راستـــي وروري ټينګوي

اروابناد روغمن



## د زده کوونکو فعالیت:

زده کوونکي دې په وړو ډلو کې د لاندې جملــو تــش ځایونــه د چوکاټ په مناسبو کلمو سره پوره کړي.

- له بدو خبرو، وهلو او ټکولو څخه ________ کول، دوستي زیاتوي.
- دوستي د ژوند خوند ______ وي.
- څوک چې ښه ______ لري، دیوازي توب احساس ________.
- د دوست پیداکول ________ کار دی.
- تر نادارن __________ هوښیار ________ ښه دئ.

| |
|---|
| دښمن |
| دوست |
| سخت |
| نکوي |
| خوی |
| نېکي |
| زیاتوي |

کورنۍ دنده: زده کوونکي دې ددوستۍ په هکله یوه جملــه ولیکي.



# اووه شپېتم لوست

# زړه سوی

**موخه:** د زړه سوي په اهميت او ارزښت پوهېدل او هغه په عملي توګه پلي كـــول او د دې مـــتن لوستل او ليكل دي.



**پوښتنې:**

(۱) كه ستاسې په لاس كې ډوډۍ وي او په خوا كې مو وږوكى ماشوم له لوږې ژاړي څه به وكړئ؟

(۲) كه چېرې يوڅوک له يوې پېښې سره مخامخ شي تاسوله هغه سره څه ډول زړه سوی ښودلی شئ؟

يوه ورځ زلمي د بام په سر ګوډۍ الوزوله ناڅاپه له بام څخـــه لاندې راولوېد، اوپښه يې ټپي شوه، ښه شو چې ځمكه سمنټ نه وه كه نه له مرګ سره به مخامخ شوی وای. زلمی په ټولو ګران و ځكه چې له ټولو سره يې ښه چلند كاوه. زلمي په ژويو ډېـــر زړه ســـوی درلود. ده به ماشومان نه پرېښودل چې سپي په تيږو ووهي. په ګرمۍ كې به يې ختګرانو او مزدورانو ته سړې شړومبې او اوبه وروړلې. زه او مورمې چې خبر شو ژر دزلمي دخبر اخيستلو له پاره هغوی كـــره ورغلو، زموږ نور ګاونډيان چې خبر شول سمدلاسه راغلل او زلمی مو روغتون ته بوته او بستر شو.

هره ورځ به چې زه دزلمي پوښتنې له پاره روغتون ته تلـــم، هغه ته مې ډاډ ورکاوه وروسته له څو ورځو چې زلمی روغ شو او کورته راغی. ټول ورته خوشحاله شول. ده له ځان سره ژمنه وکړه چې نور به د بام په سر ګوډۍ نه پورته کوي.

نو مونږ ته هم لازمه ده چې په انسانانو او ژویو زړه ســـوی ولرو او د اړتیا په وخت کې له یوبل سره مرسته وکړو.



**د زده کوونکو فعالیت:**

زده کوونکي دې کلمې او یا سمې جملې په نښه کړي لکه:

– زلمی پر بایسکل سپور و چې موټر وواهه. سم (ناسم)

– زلمي ماشومان نه پرېښودل چې سپي په تیږو وولي. سم ناسم

زده کوونکي دې د جملې تش ځای په خپلو کتابچو کې ډک کړي.

زلمی د ______ په خاطر په خلکو ګران دی.

**کورنۍ دنده:** زده کوونکي دې دغه کیسه په یاد زده کړي.



# د پوهنې ترانه

پوهنه ده رڼا    وطن ته موښکلا
کتاب او قلم    زموږه رهنما

پوهنه ده رڼا، وطن ته موښکلا
کتاب او قلم زموږه رهنما

وطن زما يې ځان    له تا نه شم قربان
ته وينه دافغان    ته لوړ په ټول جهان

پوهنه ده رڼا، وطن ته موښکلا
کتاب او قلم زموږه رهنما

آباد اوسې آباد    وطنه ته شې ښاد
مونږه سربښندوپه تا    اوساتو دې آزاد

پوهنه ده رڼا، وطن ته موښکلا
کتاب او قلم زموږه رهنما

ته کور يې هم مې ګور    ته پلارې هم مې مور
ته زړه دآسيا    او زما دسترګو تور

پوهنه ده رڼا، وطن ته موښکلا
کتاب او قلم زموږه رهنما

ته ننګ يې دآريا    او تاج يې ديما
ځاريږمه له تا    افغانستان زما

پوهنه ده رڼا، وطن ته موښکلا
کتاب او قلم زموږه رهنما

محمد مُعين مرسيتال